

# ملي سرود

دا وطن افغانستـان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولـو کور دی
د پښتـون او هـزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېــواد به تل ځلیږي
په سینـه کې د آسـیا به
نوم د حق مـو دی رهبـر

دا عـزت د هـر افغان دی
هر بچی یې قهرمـان دی
د بـلوڅـــو د ازبکـــو
د تـرکمنـــو د تـاجکـــو
پـامیریـان، نـورستانیـان
هـم ایمـاق، هم پشه یان
لکه لمر پر شـنه آسـمان
لکـه زړه وي جـاویـدان
وایــو الله اکبر وایو الله اکبر

# د کتاب ځانګړتیاوې

مضمون: هېوادپالنه

مؤلفین: د تعلیمي نصاب د ټولنیزو علومو دیپارتمنت د درسي کتابونو مؤلفین

اډیټ کوونکي: د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

ټولګی: نهم

د متن ژبه: پښتو

انکشاف ورکوونکی: د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

خپروونکی: د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هجري شمسي

د چاپ ځای: کابل

چاپخونه:

برېښنالیک پته: curriculum@moe.gov.af





## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځ ته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیڅلي او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي



# فهرست


| د لوست شمېري | سرليکونه | مخونه |
|---|---|---|
| ۱ | مناجات | ۱ |
| ۲ | د اسلام د ستر پيغمبرصلی الله عليه و سلم اخلاق | ۴ |
| ۳ | د افغانستان لرغونی تاريخي مدنيتونه | ۷ |
| ۴ | ملي ارزښتونه | ۱۱ |
| ۵ | د افغانستان د ملت شريک ارزښتونه | ۱۴ |
| ۶ | ملي مشر: ميرويس نيکه | ۱۷ |
| ۷ | پر شخصي گټو د ملي گټو غوره بلل | ۲۰ |
| ۸ | له اسلامي امت سره د افغانانو تړاو | ۲۳ |
| ۹ | د يوه باغ گلان | ۲۷ |
| ۱۰ | ملي او تاريخي وياړونه | ۳۰ |
| ۱۱ | احمدشاه بابا، پر دين، هېواد او خلکو مين واکمن | ۳۳ |




| د لوست شمېري | سرليکونه | مخونه |
|---|---|---|
| ۱۲ | هېواد پالنه، نه عصبيت | ۳۶ |
| ۱۳ | غازي ميربچه خان کوهدامني | ۳۹ |
| ۱۴ | د آزادۍ په اړه د غازي امان الله خان ويناوې | ۴۱ |
| ۱۵ | د ملي مشرتابه ځانګړتياوې | ۴۴ |
| ۱۶ | د ولسونو د لوړتيا او ځوړتيا لاملونه | ۴۷ |
| ۱۷ | کورنۍ جګړه، د ولسونو تباهي | ۵۰ |
| ۱۸ | علامه سيدجمال الدين افغان | ۵۳ |
| ۱۹ | هېوادپالنه او د ملي سوداګرو دنده او مسؤوليت | ۵۶ |
| ۲۰ | د لانجو او ربړو په هوارۍ کې د جرګو رول | ۵۹ |
| ۲۱ | د هېوادوالو د ځان، مال او ناموس ساتنه | ۶۲ |
| ۲۲ | پوهاند عبدالحکيم طبيبي | ۶۵ |
| ۲۳ | ملي يووالی، يوه څرګنده اړتيا | ۶۸ |
| ۲۴ | استاد صلاح الدين سلجوقي | ۷۱ |
| ۲۵ | د قانون منل د ملي يووالي ضامن | ۷۴ |
| ۲۶ | عدالت، د ټولنې د ټينګښت بنسټ | ۷۷ |
| ۲۷ | د ملي يووالي په پياوړتيا کې د ډله ييزو رسنيو دنده | ۸۰ |
| ۲۸ | تعصب، يو ناروا عمل دی | ۸۳ |
| ۲۹ | دوکتور محمد يوسف | ۸۶ |
| ۳۰ | د هېواد حقونه | ۸۹ |






## مناجات

مورږ او تاسو د دعا نوم اورېدلی دی، پېژنو یې او تل دعا کوو. هره ګړۍ او هر مهال د اړتیا د پیدا کېدو په وخت کې د خدای تعالی دربار ته د دعا لاسونه پورته کوو او د خپلو اړتیاوو د پوره کېدو غوښتنه ترې کوو. دا کار ټول مسلمانان هر وخت په هر ځای کې کوي. پر دعا سربېره په نورو لارو چارو هم له خدای جل جلاله څخه د خپلو اړتیاوو د پوره کېدو غوښتنه کوو. هره هغه غوښتنه چې په یوه ځانګړې حالت کې د الله تعالی دربار ته له عذر، زارۍ، بې وسۍ او نیاز سره مله وي، خپله کمزوري او د الله جل جلاله لویي او رحم پکې وستایل شي، مناجات بلل کیږي. مناجات او دعا که له یوې خوا له انسان سره د الله تعالی د مرستې لامل کیږي، له بلې خوا دا عمل په خپله عبادت هم ګڼل کیږي او د نېکیو او ثوابونو په عملنامه کې لیکل کیږي.

مناجات په پښتو ادبیاتو کې پخوانۍ ریښې لري، د بیټ نیکه مناجات یې څرګنده بېلګه ده.

آیا تاسو تر اوسه کوم مناجات لوستی؟

لویه خدایه!

زه ستا کمزوری بنده یم، پر ما د رحمت باران واوروه چې وچکالۍ ځپلې دښته مې ستا د رحمت پر اوبو خړوبه او ګرمۍ وهلې سینه مې پرې یخه شي.



زما ربه!
زه د ګناهونو په سمندر کې ډوب یم، ما په خپل رحم او کرم ساحل ته وباسه او له دې ډاروونکې حالت نه مې وژغوره!
الهي!
زه په خپل خیر او شر نه پوهېږم، ما ته د خیر او فلاح لار راوښیه.
الهي!
زما کور، کوډله او جونګړه ورانه ویجاړه شوې، په اوړي کې مې ګرمي او په ژمي کې مې ساړه غوښې او پوستکي رانه خوري، ته پر ما د خپل رحمت سیوری وکړه.
لویه خدایه!
زه نه پوهېږم، د ناپوهۍ د تورتم پردې مې پر سترګو خپرې دي، سترګې مې له تیارو او ناخوالو پرته نور څه نهویني، ته مې له سترګو څخه د ناپوهۍ پردې لرې کړه، ته مې د زړه سترګې رڼې کړه.
الهي!
زه بې لارې شوی یم، ړوند یم، ښه او بد نه پېژنم. ما ته لار راوښیه، د سترګو نور راکړه، له بدو مې راواړوه او پر نیکیو مې سم کړه.
لویه خدایه! زه ګنهکار یم، هره توبه بېرته په خپله ماتوم، بیا بیا ګناه کوم. انسان یم، بده ګړۍ او ناوړه حالت مې ژر له یاده وځي، پر خپلو ژمنو نه درېږم، خو بیا هم د کړاو پر مهال ستا دربار ته درګرځم.
که هر څو مې وشړې، بیا درځم، ځکه:
له تا پرته چا ته ورشم!
چا ته وژاړم!
د چا لمن ونیسم!
له تا پرته څوک نه لرم. تا فرمایلي، زما له دربار او رحمت څخه مه نهیلې کیږئ! زه هم د هغه شېبې په تمه یم، چې ستا د رحمت او مغفرت تر سیورې لاندې راشم، عقل پیدا کړم، هوښیار شم، سمه او کږه لار وپېژنم، دوست او دښمن بېل کړای شم، ورور ته ورور ووایم او دښمن ته دښمن.
د ورور خبره واورم او دښمن ته نه ووایم.
الهي!
ما ته وس راکړه چې خپل هېواد، دا زما وران او کنډر کورګی، ودان کړم، مینه ورسره وکړم، ښکلی یې کړم، د پردیو له ناپاکو منګولو څخه یې وژغورم.



الهي، زما ښکلی هېواد، زما شين او سمسور هېواد، زموږ د هېواد دښمنانو وران ويجاړ کړی او موږ يې زموږ د ناپوهۍ له امله د يوه او بل پر غاړه اچولي يو.

الهي!

دا د انسانيت او شريعت لار نه ده!

الهي!

ماته د انسانيت او شريعت لار وښيه او پر هغې مې رهي کړه.

خدايه!

ته راته د دې وران کورګي د ودانولو لارچار وښيه.

الهي!

ته مې په زړه کې له خپل کورګي سره مينه لا توده کړه او همت راکړه چې بېرته يې ودان کړم او د ګلو بڼ ترې جوړ کړم.

الهي!

زما بښوسی ته وګوره، زما ګناهونو ته مه ګوره، زما د ګناهونو پېټی زما له اوږو سپک کړه او پر هغه لار مې رهي کړه چې تا پرې خپل نازولي بنده ګان روان کړي دي. امين يا رب العلمين



## فعاليت

زده کوونکي دې په ډلو کې د پورته مناجات په اړه خبرې وکړي او وروسته دې يې څو تنه په وار په ښه او ښکلي غږ ولولي.



## ارزونه

۱ – دعا او مناجات څه توپير لري؟

۲ – آيا د دعا او مناجات وختونه او حالتونو سره يوشان دي او که توپير لري؟

۳ – د مناجات پر مهال انسان څنګه حالت غوره کوي؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کورونو کې د لوی خدای جل جلاله له دربار څخه د مناجات په ترڅ کې له روان حالت څخه د خپل هېواد د ايستلو غوښتنه وکړي او د کاغذ پرمخ دې وليکي.






## د اسلام د ستر
## پیغمبر صلی الله علیه وسلم اخلاق

لوی خدای جل جلاله د اسلام گران پیغمبر صلی الله علیه وسلم د لویو اخلاقو د څښتن په توگه راپېژندلی دی. الله جل جلاله د اسلام ستر پیغمبر حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ته فرمايي:
﴿وَإِنَّكَ لَعَلَى خُلُقٍ عَظِيمٍ﴾ ژباړه: «ته د لويو اخلاقو څښتن يې.»
د پيغمبر صلی الله عليه وسلّم رسالت پر اخلاقو ولاړ دی، هغسې چې په خپله يې فرمايلي دي: «زه ددې لپاره راليږل شوی يم چې نېک اخلاق د بشپړتيا پړاو ته ورسوم.»
د اسلام ستر پيغمبر صلی الله عليه وسلم ټول عالم ته د غوره اخلاقو بېلگه، ښوونکی او رحمت دی.
آيا تاسو ته د پيغمبر صلی الله عليه وسلم د نېکو اخلاقو کومه بېلگه در په زړه ده؟
په دې لوست کې د پيغمبر صلی الله عليه وسلم د اخلاقو څو بېلگې لولو، ترڅو د هغه مبارک پر قدمونو قدم کېږدو او د دنيا او آخرت سرلوړي او نېکمرغي تر لاسه کړو.

### اخلاق د ايمان او ديانت معيار دی

د اسلام ستر پيغمبر صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: «تر ټولو غوره مؤمن هغه څوک دی چې نېک او ښه اخلاق ولري.» همدا راز روايت شوی چې يو چا د خدای له رسول صلی الله عليه وسلم څخه وپوښتل: «دينداري څه شی دی؟» د الله رسول صلی الله عليه وسلم ځواب ورکړ: {حسن الخلق}



يعنې، د ښه خوی لرل.

په يوه بل روايت کې له حضرت پيغمبر صلی الله عليه وسلم څخه وپوښتل شول: «د خدای ﷻ تر ټولوغوره ورکړه څه شی دی؟» د الله ﷻ رسول وفرمايل: {حسن الخلق}، يعنې نېک اخلاق. نېک اخلاق انسان ته د لوی خدای جل جلاله له خوا تر ټولو ښه او نېک سوغات دی.

## د پيغمبر صلی الله عليه وسلم د اخلاقو ځينې بېلګې

❁ د اسلام ستر پيغمبر ښکلې څېره درلوده، حيا ناک، متبسم او د پراخې تندې خاوند و، خپلو ملګرو ته يې د ښه او خندان چار چلند لارښوونه کوله. ساده ژوند يې درلود او په ټولو چارو کې يې ساده‌ګي خوښوله.

❁ د اسلام ستر پيغمبر صلی الله عليه وسلم ته فقيران، بې وزلي او مسکينان ګران وو، له هغوی سره يې ناسته ولاړه کوله، ډوډۍ يې ورسره خوړه او مرسته يې ورسره کوله.

❁ پيغمبر صلی الله عليه وسلم له خپلې کورنۍ، خپلوانو او نورو خلکو سره، که به مسلمانان هم نه وو پر هغوی به يې صله رحمي درلود. پر نورو يې هم د دې کار ټينګار کاوه. د ټولو حقونه يې سرته رسول، راشه درشه يې ورسره درلوده او د هغوی پوښتنه يې کوله، خو هېڅکله يې خپل خپلوان او کورنۍ تر نورو مسلمانانو غوره نه ګڼله.

❁ پيغمبر صلی الله عليه وسلم د کور په کارونو کې مرسته کوله، خپلې جامې يې پخپله ګنډلې، له خادمانو سره پر يو دسترخوان کيناسته، له بداي او بې وزلي سره يې يو شان روغبړ کاوه، تر هغه پورې يې خپل لاسونه نه خوشې کول چې مقابل لوري به نه وو پرېښې.

❁ پيغمبر صلی الله عليه وسلم به هېڅکله په هغو حلالو خوړو کې عيب نه لټولو چې حضور ته به يې وړاندې کېدل. که غوښتل يې چې ويې خوري، نو خوړل به يې او که نه، نو پرېښودل به يې.

❁ پر پيغمبر صلی الله عليه وسلم ماشومان ډېر ګران وو، هغوی به يې په غېږ کې اخيستل او شفقت او مهرباني به يې پرې کوله. مسلمانانو ته يې پر ماشومانو، په تېره بيا پر نجونو د مينې او شفقت امر کاوه او د کوچنيانو او ځوان نسل پر روزنې يې ټينګار کاوه.

❁ پيغمبر صلی الله عليه وسلم به چې په کومې غونډې کې برخه اخيسته، د غونډې برخوال يې د ځان په وړاندې له درناوي او تعظيم څخه منع کول. د غونډې هر ځای چې به تش و، هلته به کيناسته.

❁ پيغمبر صلی الله عليه وسلم تر ټولو رښتيا ويونکی شخص و، ټولې خبرې يې له حقيقت سره سمې وې، که ټوکه يې هم کوله، خبره يې له صدق او رښتيا څخه لرې نه وه. د اړتيا ترکچې يې خبرې کولې. په خبرو کې يې بې ځايه زياتوالی او لږوالی نه و.

❁ پيغمبر صلی الله عليه وسلم د عفوې او بښنې بېلګه وه. هېڅکله د ځان لپاره پر چا نه په غوسه



کېده. له چا څخه يې غچ نه اخيست.

- پيغمبر صلی الله عليه وسلم تر ټولو زړور انسان و، که به په کوم ځای کې خلکو ته خطر متوجه و، له ټولو مخکې کېده او د جګړې په ډګر کې دښمن ته تر ټولو نژدې شخص و.
- هرکله چې به پيغمبر صلی الله عليه وسلم ته غم او خپګان رسېده، نو لمونځ او دعا به يې کوله، ويل به يې: «د سترګو روښنايي مې په لمانځه کې نغښتې ده.»

دا وې د اسلام د ستر پيغمبر حضرت محمد صلی الله عليه وسلم د اخلاقو او خويونو څو بېلګې. که چېرته مسلمانان او نړيوال په رښتينې ډول د هغو پېروي وکړي، نو ځرګنده ده چې د دنيا او آخرت برياليتوب او خلاصون به ترلاسه کړي، سوله، امنيت، نېکمرغي، سوکالي او پرمختګ به په ټولنه کې رامنځ ته شي.




زده کوونکي دې په وار سره په دې اړه خپل نظر ځرګند کړي چې څنګه د اسلام د ستر پيغمبر صلی الله عليه وسلم د شخصيت درناوی وشي؟




١ – اخلاق د اسلام په دين او د پيغمبر صلی الله عليه وسلم په رسالت کې څنګه دريځ لري؟
٢ – حسن الخلق څه مفهوم لري او څنګه د ايمان او ديانت معيار دی؟
٣ – له خپلوانو، کوچنيانو، فقيرانو، بې وزلو او نورو خلکو سره د پيغمبر صلی الله عليه وسلم چار چلند څنګه و؟
٤ – کله به چې د اسلام ستر پيغمبر ته غم او کړاو پېښېده، څه شي ته يې مخ اړاوه؟




د خپلو لويانو او مشرانو په مرسته د پيغمبر صلی الله عليه وسلم د حلم (نرمۍ)، عفوې او بښنې په اړه يوه مقاله وليکئ.





# د افغانستان لرغونی تاریخي مدنیتونه

تاسو له خپل هېواد، افغانستان سره بلد یاست. په تېرو ټولګیو کې مو د هغه د جغرافیایي موقعیت او ارزښت، اوبو او هوا، اوسېدونکو، غرونو او دریابونو او نورو په اړه معلومات تر لاسه کړي دي. ویاړنې او افتخارات یې پېژنئ.

په دې لوست کې به د افغانستان د تاریخي مدنیتونو په اړه معلومات ترلاسه کړئ، په دې به پوه شئ چې زموږ ګران هېواد د پېړیو په اوږدو کې د مدنیتونو زانګو وه او د خپل جغرافیایي موقعیت له امله تل له پردیو یرغلونو سره مخامخ و؛ له دې امله یې لوړې ژورې لیدلي او اوسېدونکو یې له ستونزو سره مقابله کړې ده.

تاسو د خپل ګران هېواد د ویاړ نښه څه شی بولئ؟

ستاسو په نظر د هېواد د خپلواکی او استقلال د ساتلو لپاره کوم کار ډېر مهم دی؟

زموږ ګران هېواد، افغانستان هغه سیمه ده چې د تاریخي پېر د مخه له لرغونو دورو څخه بیا تر اوسه د مدنیتونو سرچینه، د فرهنګونو د تېرېدو لاره او د انساني فکر او تهذیب زانګو وه. د تاریخ په اوږدو کې له دې فرهنګ زېږوونکې خاورې څخه غښتلي مدنیتونه راپاڅېدلي او ددې خاورې اوسېدونکو په تاریخي بهیر کې تل خپله خپلواکي او ملي بنه ساتلې ده.



## ويدي مدنيت

دا مدنيت د افغانستان د تاريخ له لرغونو وختونو، يعنې د ۱۴۰۰ ق. م (قبل الميلاد) په شاوخوا کې له (ويدي)[1] دورې څخه پيل شوی او بيا د (اوستا) په دوره کې، تر شاوخوا ۱۲۰۰ ق. م پورې رارسېدلی. په دې دوره کې آريايان په بلخ کې د بدوي او کوچيتوب له ژونده ښاري ژوند او مدنيت ته رسېږي.

## اوستايي مدنيت

د افغانستان د آريايي خلکو دويم مدنيت په بُخدي (بلخ)، د هندوکش په شمالي او سويلي سيمو او د هلمند په وادۍ کې و چې د (۱۲۰۰ ق. م) په شاوخوا کې پيل شوی او د (اوستا) په نامه يو کتاب ترې راپاتې دی. دا کتاب پنځه بابونه لري. دا مدنيت په بُخدي (بلخ) کې زېږېدلی، له دې امله زموږ د هېواد په تاريخ کې ډېر زيات اهميت لري. د اوستا کتاب د افغانستان د لرغونو خلکو مدني، فکري، مذهبي او فرهنګي اوضاع په ښه ډول بيانوي.

## کوشاني مدنيت

تر دې وروسته زموږ د هېواد په لوېديځو سيمو کې د آريايانو، هخامنشيانو، اشکانيانو او ساسانيانو مدنيتونه منځ ته راځي، خپل ځانګړي مدني او فرهنګي بنسټونه خپروي. د هخامنشي دورې په پای کې يوناني سکندر له ۳۳۰ څخه تر ۳۲۶ ق. م پورې د فارس له لارې پر افغانستان يرغل کوي. دا فتح افغانستان ته د يوناني ژبې، ادارې، سياست، هنر، ليکدود او نورو فرهنګي مظاهرو اغېز راولي. د دويمې ميلادي پېړۍ په لومړيو کې د افغانستان کوشاني لوی پاچا، کنيشکا د لويو کوشانيانو د لړۍ

---

۱- **اريا**: اصيل او نجيب، يا د ځينو په وينا زارع، کرونده ګر

**ويدي مدنيت**: آريايان د نفوسو او کورنيو د زياتوالي له امله ختيځې خواته وکوچېدل او د سند له سينده د هند شمالي ارتو ورشوګانو ته تېر شول. په هغه ځمکه کې يې يو مدنيت جوړ کړ چې د ((ويدي مدنيت)) په نامه ياديږي. ((ويد)) څلور برخې درلودې چې نومونه يې ((ريګ ويد))، ((سام ويد))، ((اتهروا ويد)) او ((يجور ويد)) وو.

**اوستايي مدنيت**: د آريايانو دويم مدنيت په بُخدي (بلخ)، د هندوکش په شمالي برخو او سويلي سيمو او د هلمند په وادۍ کې و. د (۱۲۰۰ ق. م) شاوخوا راپيدا شوی او د اوستا په نامه يو کتاب ترې پاتې دی چې پنځه بابه لري. دا کتاب د افغانستان په تاريخ کې ډېر ارزښت لري. اوستا د افغانستان د لرغونو اوسيدونکو مدني، فکري او فرهنګي اوضاع څرګندوي.

**سکندر**: د يونان په شمال کې د مقدوني پاچا، دويم فليپ زوی و. بر ۳۵۶ ق. م د (پلا) په ښار کې زېږېدلی. سکندر په شل کلنۍ کې د پلار تر وژل کېدو وروسته پاچا شوی دی.



بنسټ کېښود او د افغانستان مدنيت او فرهنګ ته يې يوه ځانګړې بڼه ورکړه.
د کوشاني پېر کلتور، تمدن او هنر د خپلې لوړتيا او ځوړتيا پړاوونه تېر کړي او د اسلامي پېر تر پيل او د عربو د لښکرو تر نفوذ پورې رارسېدلی. بيا يې په اسلامي لومړۍ پېړۍ او د ۶۵۰ ميلادي په شاوخوا کې خپل ځای يو بل ګډ مدنيت او فرهنګ ته پرېښود چې هغه ته د افغانستان د لومړۍ اسلامي دورې فرهنګ ويل کيږي.

## اسلامي مدنيت

د لومړۍ اسلامي پېړۍ پر لومړۍ څلورمه (شاوخوا ۲۴هـ) د اسلام د بريالیو لښکرو فتوحات تر خراسان او سيستان پورې رارسېدلي وو. د دوو پېړيو په اوږدو کې د اسلام د سپېڅلي دين، افکار، کلتور او ژبه ددې خاورې له لرغوني فرهنګ سره يوځای شوه.
له ۱۳۲ هـ کال وروسته د امويانو د واک کمپله ټوله شوه. خراسانيانو په بغداد کې د عباسي کورنۍ خلافت جوړ کړ. دا وخت په افغانستان کې يو ځانګړی اسلامي افغاني فرهنګ رامنځ ته شو، يعنې تر اسلام د مخه دورو او د فرهنګ پر پخوانيو بنسټونو يوه نوې مبدا زياته شوه او هغه د قرآن عظيم الشان او اسلام اغېز و چې د افغانستان له هېواده د مدنيتونو د يوې لارې په توګه د هند، ماوراء النهر او چين خواته هم تېره شوه. د يوه انګريز تاريخ پوه په وينا د افغانستان خاوره د فرهنګونو د انشعاب ټکی او د ځلا مرکز او څلور لارې و.
څنګه چې خراسان د منځنۍ آسيا پر څلور لارې پروت و، نو له لوېديځه، ختيځ ته او له ختيځه لوېديځ ته د افکارو د انتقال ځای وګرځېد. اسلامي فرهنګ چې اوس يې د ټولنې په رېښو کې ځای نيولی، د خلکو د ژوندانه ټول اړخونه يې تر اغېز لاندې راوستي او خلکو په خپلو سپېڅلو عقيدو او منلي ارزښتمن فرهنګ کې ځای ورکړی دی.
له دې ټولو لوړو ژورو له تېرولو وروسته پر ۱۱۶۰ - ۱۱۸۶هجري (۱۷۴۷ – ۱۷۷۳ م) د لوی احمدشاه بابا د واکمنۍ پر مهال د اوسني افغانستان د بنسټ ډبره کېښودل





شوه چې د افغانستان د تاریخ اوسنی پېر هم له همدې ځایه پیلیږي.

په لنډ ډول افغانستان له لرغوني پېر نیولې تر اوسه پورې د مدنیتونو او فرهنگونو زانگو وه. بېلابېل مدنیتونه او فرهنگونه یې په خپلې غېږې کې روزلي دي. زموږ په هېواد کې تل افغاني فرهنگ موجود و، که څه هم د زماني له تېریدو سره یې بڼې بدلون کړی دی، خو ددې څلورلاري افکارو، اندېښنو او مدنیت تل خپل افغاني هویت او ځانگړتیا ساتلې او له اسلامي فرهنگ او ارزښتونو سره لا نور هم بډای شوی دی.



زده کوونکي دې په مناسبو ډلو ووېشل شي. هره ډله دې د افغانستان د یو لرغوني مدنیت په اړه خبرې وکړي.



١ – زده کوونکو له پورته لوست څخه څه مفهوم واخیست؟

٢ – د هېواد پر تېر تاریخ او تاریخي ارزښتونو پوهېدل څه گټه لري؟

٣ – اسلامي فرهنگ افغانستان ته په کومه پېړۍ کې راغی او د خلکو پر افکارو او عقایدو یې څه اغېز وکړ؟

٤ – څو تنه زده کوونکي دې د اسلامي فرهنگ څو سترې بېلگې ونوموي.

٥ – موږ پر خپل هېواد ولې ویاړو؟



د هېواد پر تېر تاریخ ویاړنه موږ ته څه رازده کوي؟ په دې اړه دې زده کوونکي یوه لنډه مقاله ولیکي او په بل درسي ساعت کې دې نورو زده کوونکو ته ووایي.





# ملي ارزښتونه

د افغانستان ټولنیز جوړښت ډېر په زړه پورې دی. داسې رنګارنګي پکې شته چې د نړۍ په نورو ولسونو کې به یې بېلګه لږه ولیدل شي. دا رنګارنګي یې د یوه باغ او چمن ګلانو ته پاتې کیږي. څومره چې په یوه باغ کې رنګارنګ ګلان وي، هماغومره یې ښایست او ښکلا هم زیاته وي.

په توکمیز ډول افغانستان د بېلابېلو قومونو او توکمونو ګډ کور دی. دلته پښتانه، تاجک، هزاره، ازبیک، ترکمن، بلوچ، نورستانی، پشه یي، عرب، پامیري، قزاق، قرغېز، براهوي، ګوجر او نور څنګ په څنګ اوسېږي. هغوی د قرآني آیتونو پر بنسټ د توکمونو، قومونو او ژبو بېلوالی یوازې د یو او بل د ښه پېژندلو یوه لار بولي، نه د امتیاز او پر یو بل د غوره والي نښه.

ستاسو په اند ملي ارزښتونه کوم دي؟

ملي ارزښتونه له هغو شتمنیو څخه عبارت دي چې د هېواد هر اوسېدونکي ته ارزښت ولري، خپل مال او شته ورته ښکاره شي، خپلې پټې او ښکاره ګټې پکې وویني، د ویاړ نښه یې وبولي او د ساتلو لپاره یې له سر او مال څخه تېر شي.

ټول افغانان ځانونه ددې خاورې بچیان بولي او پر خپل افغاني هویت ویاړي. هغوی ملي هویت، نه یوازې د ځان پېژندنې یوه لاره بولي، بلکې لوړ او عالي اخلاق، نارینتوب، غیرت، زړورتیا، ناموس ساتنې، سولې او جګړې، سخا، ښېنې، ننګې، مېړانې، مېلمه پالنې او د لسګونو نورو ښو او غوره اخلاقو او غوره صفتونو یوه ټولګه یې بولي. په بېلابېلو غونډو او د ویناوو او خبرو د پخوالي لپاره



افغانیت د ځان افتخار او ویاړ بولي.

**۱ - ملي یووالی**: ملي یووالی د افغانانو یوه ځانګړنه ده. کېدای شي کله ناکله افغانان په خپلو منځونو کې تاوتریخوالي ولري، هغه د ژوند مالګه او له ګډ ژوند څخه راولاړه شوې ستونزه بولي، خو د غلیم پر وړاندې بیا یو موټی او یو اوسپنیز ګوزار شوي دي.

**۲ - ګډ کور او ګډ تاریخ**: د افغانانو بل ویاړ ګډ کور او ګډ تاریخ دی. د افغانستان لرغونی تاریخ او لرغونی هېواد د ټول افغان ولس د لاس محصول دی. د غلیم پر وړاندې یې تل ګډې قرباني ورکړې، پر خپل اوسپنیز موټي یې تس او نس کړي او هېواد یې د پردیو له ناولو منګولو څخه ژغورلی دی. که خپل تېر تاریخ ته وګورو دا به راته جوته شي چې افغان باتور ولس په تشو لاسونو او پر هېوادنۍ مینې او لوړې جذبې پردیو یرغلګرو ته ماتې ورکړې او سرماتي او غاښ ماتي یې له خاورې شړلي دي.

**۳ - ګډ برخلیک**: افغانان په دې ښه پوهېږي چې د یو واحد او یو موټي هېواد د اوسېدونکو په توګه ګډ برخلیک لري؛ له دې امله یې د شخصي ګټو پرځای ملي ګټې او ارزښتونه غوره بللي او د هغو لوړولو او ساتلو ته یې متې بډ وهلي دي.

**۴ – جرګه**: ددې خاورې د اوسېدونکو لرغوني ارزښتمن دود دی. افغانان خپلې ټولې کورنۍ او ملي ستونزې د جرګو له لارې هواروي. افغانان په تاریخ کې داسې جرګې لري چې د تاریخ په پاڼو کې په زرینو کرښو لیکل شوي دي.

**۵ - ملي بیرغ او ملي نښان**: د دې خاورې بل ګډ ارزښت دی چې تل یې د هغې د لوړ ساتلو لپاره قرباني ورکړې. د ۱۸۸۰ زېږدیز کال د جولای د میاشتې ۲۷ نېټه چې د ۱۲۵۹ کال د زمري د میاشتې له شپږمې سره سمون خوري، د میوند په وچه دښته کې د غازي محمد ایوب خان تر مشرۍ لاندې د هېواد له هرګوټ څخه زلمیان راټول شوي وو. له پیرنګیانو سره د هېواد د بچیانو دویمه جګړه وه. د میوند په جګړه کې ملالۍ د نورو نجونو په څېر غازیانو ته اوبه رسولې. دا هغه جګړه وه چې د پیرنګي د ښکېلاک جرړې یې په لندن کې ولړزولې. برتانویانو د خپل وروستني یرغل لپاره له خپل ټول ځواک څخه کار واخیست. داسې ښکارېدله چې برتانویان د جګړې ګټونکي دي. د ایوب خان له څنګه څلور زره سپاره سرتیري په دریو خواوو کې خواره واره شول. انګریزانو د افغان غازیانو د آس سپرو دورې ولېدلې او ګومان یې کاوه چې افغانان په تېښته شول. په ټول ځواک یې د جګړې ډګر ته را ودانګل. د غازیانو سرو وینو دښته ښکلې کړې وه. ملالۍ چې له لرې جګړه څارله، ویې لېدل افغان بیرغچي د جګړې په ډګر کې را پریوت، ډګر ته یې را ودانګل، بیرغ یې په لاس کې ونیو او دا لنډۍ یې وویله:

«که په میوند کې شهید نه شوې خدایږو لالیه بې ننګۍ ته دې ساتینه»



ددې لنډۍ په اورېدلو د غازيانو وينې په خوټکېدو راغلې او هر غازي له تورو او ډالونو سره پر دښمن مخ را واړاوه. د ملالۍ د لنډۍ ازانګو د جګړې بهير او برخلېك ته بدلون ورکړ او غازيانو جګړې ته مخه کړه، جګړه لاس او ګريوان شوه. د انګريزانو او د هغوی د جګړې د ډګر د ملګرو مړي هرې خواته خواره واره پرېوتل او له دښمن څخه لاره ورکه شوه. په دغې جګړې کې ملالۍ هم خپل ژوند له لاسه ورکړ. جګړه پای ته ورسيده او د سوبمنو افغانانو سوبې د لندن د واکمنۍ بنسټونه ولړزول. د ملالۍ نوم د افغانې سوبمنو اتلانو په کتار کې د هېواد په تاريخ کې ولېکل شو. راتلونکو نسلونو ته د ملالۍ نوم په وياړ وساتل شو، ښوونځي، مجلې، روغتونونه د ميوندي ملالۍ په وياړلي نامه ونومول شول.

په لنډ ډول ويلای شو چې د افغانانو ملي ارزښتونه پر اسلامي ارزښتونو لا پسې ښاېسته شوي او ټولو اوسېدونکو ته تقدس او سپېڅلتيا لري. مېلمه پالنه، پنا ورکول، ننواتې منل او په لسګونو دې ته ورته نور داسې افغاني دودونه دي چې د ملي ارزښتونو په بڼه کې هر افغان ته د وياړ او درناوی نښه ده.




زده کوونکي دې په مناسبو ډلو ووېشل شي. هره ډله دې د خپلې خوښې پر يو ملي ارزښت وغږېږي او د خپلو خبرو اترو پايله دې د خپل يو استازي له خوا ټولګيوالو ته وړاندې کړي.




١ - شخصي ګټې او د ټولو ګټې څنګه يو له بله توپيروئ؟

٢ – د ګډ کور او ګډ تاريخ مفهوم څه شی دی؟

٣ - زده کوونکي دې يوه شېبه په دې اړه سوچ وکړي چې د ملي ارزښتونو د ساتلو روحيه څنګه ژوندۍ ساتل کېږي، بيا دې دوه تنه په خپله خوښه خپل نظر نورو ته وړاندې کړي.

٤ - يو زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته راشي، د يو څو مهمو ګډو ټکو نومونه دې واخلي چې هغه د هېواد استوګنو قومونو او توکمونو د يووالي لامل شوي دي.




زده کوونکي دې په کورونو کې د ملي ارزښتونو په اړه لس کرښې مقاله وليکي او د هېوادپالنې د مضمون په بل درسي ساعت کې دې نورو ټولګيوالو ته واوروي.



# د افغانستان د ملت شریک ارزښتونه

د نړۍ په بېلابېلو برخوکې پراته ولسونه له یوبل سره ګډ ټکي او مشترکات لري. دا ولسونه پر هغوګډو ټکو راټولیږي او خپل ملي یووالی او وحدت پرې ټینګوي. یو شمېر لوړ ارزښتونه، لکه دین، مذهب، اساسي قانون، بیرغ، ملي سرود، هېواد، ملي هویت، تاریخ، فرهنګ، ژبه، اقتصادي ګټې او نور د ولسونو، ملتونو او دولتونو جوړوونکي توکي بلل شوي دي.

افغانستان د نړۍ د تر ټولو لرغوني هېواد په توګه کوم ګډ ټکي لري؟ کوم ارزښتونه او عناصر ددې ولس د ملي یووالي او یو موټي توب لامل وو؟ په سخت او ستونزمن حالت او له پردیو یرغلګرو سره د مقابلې لپاره کوم عوامل ددې ولس د وحدت او بریالیتوب لامل شوي وو؟

زموږ هېواد، افغانستان له ویاړه ډک لرغونی تاریخ لري. زموږ خاوره د پخوانیو آریایانو اصلي ټاټوبی دی. څو زره کاله دمخه آریایان له همدې سیمې څخه نورو ځایونو ته لېږدېدلي او بشري تمدنونه یې په هند، فارس، اروپا او د نړۍ په نورو سیموکې رامنځ ته کړي دي. دا خاوره له لرغوني زمانې څخه تر اوومې میلادي پیړۍ پورې د آریانا په نامه پېژندل شوې وه. له اوومې پېړۍ راوروسته تر اتلسمې پېړۍ پورې د خراسان په نامه مشهوره وه. د اتلسمې پېړۍ له نیمایي راوروسته د افغانستان په نامه ونومول شوه.



## زموږ د ولس مهم ګډ ټکي

د تاریخ په اوږدو کې ډېر ګډ ټکي، لکه ګډه خاوره، ګډ فرهنګ، ګډ تاریخ، ګډو احساساتو او عاطفو ددې ولس خلک یو موټی کړي چې په پایله کې یې د بهرنیو دښمنانو او تاړاکګرو په وړاندې له خپل هېواد او تاریخي میراثونو څخه په پوره مېړانې او اتلولۍ دفاع کړې ده. له هغه وروسته چې د اسلام سپېڅلي دین دا خاوره رڼا کړه او خلکو یې د اسلام په انسان جوړوونکي او ژغورونکي دین ایمان راوړ، دیني عقیده او اسلامي ګروهه ددې سیمې د اوسیدونکو بنسټیز ګډ ټکی شو.

ددې خاورې تر ټولو لوی دولتونه د اسلام تر سیورې لاندې منځ ته راغلي دي. په اسلامي پېر کې زموږ د خلکو زیاتره برې او په علمي، سیاسي، پوځي او فرهنګي ډګرونو کې لاسته راغلې ویاړنې ددې خاورې د بچیانو په برخه شوي دي. د کورني تاوتریخوالي او بهرنیو یرغلونو په وړاندې دیني احساسات او هېوادنۍ مینه تل د ولسونو د ویښتیا، د جهاد د مورچلونو د بریالیتوب او د افغانانو د یووالي او پیوستون لامل و.

ددې سیمې د بېلابېلو قومونو او قبیلو خلکو، رنګارنګو نژادونو، ژبو او دود او دستور د یوه باغ د بېلابېلو ګلونو په څېر یو واحد ملت جوړ کړی. ټولو ته خپل هېوادګران دی او د دفاع او سمسورولو لپاره یې له یو بل څخه مخکې کیږي، سرونه ښندي او له هېواد څخه ځانونه قربانوي. د یوې ګډې عقیدې درلودل چې د ولس ټول خلک پرې راټول شي او پر همدې ګډې عقیدې خپل ملي هویت تثبیت کړي، د هر ولس د هیلو د سرته رسېدو او غوړېدا لامل کیږي.

د دې هېواد ټول زامن دنده لري چې د اسلام د سپېڅلي دین د لارښوونو په رڼا کې په ورورولۍ او برابرۍ، سربښندنو، یووالي او پیوستون تر یو واحد بیرغ، واحد دولت او واحد قانون لاندې د خپلو نیکونو د ویاړونو د ساتلو او لوړولو په لار کې ګامونه پورته کړي، د خپل ګران هېواد د ودانولو، بیارغاولو او پرمختګ لپاره کار وکړي او له هیڅ راز هلو ځلو څخه ځانونه ونه سپموي.





## فعالیت

زده کوونکي دې د ولسونو د ملي یووالي د مهمو ګډو ټکو نومونه واخلي، و دې وايي چې د خلکو په پیوستون کې کوم یو ډېره مهمه ونډه لري.



## ارزونه

۱ – د افغانستان خاوره په لرغونو زمانو کې د کومو قومونو ګډ کور و؟ ددې خاورې لرغوني اوسېدونکي د نړۍ کومو برخوته ولېږدېدل؟

۲ – ولې ګډه عقیده د هېواد ټول اوسېدونکي په خپل شاوخوا راټولای شي؟

۳ –د افغانستان د مهمو تاریخي دورو نومونه کوم دي؟

٤ – په اسلامي دوره کې د افغانستان د یو شمېر ویاړونو نومونه واخلئ.

## کورنۍ دنده

هر زده کوونکی دې له ملي ګډو ټکو څخه یو غوره کړي او په ملي یووالي او د هېواد په ودې او پرمختګ کې دې د هغې د ونډې په اړه یوه مقاله ولیکي.





## ملی مشر: میرویس نیکه

افغانستان په خپله غېږه کې نومیالي مشران، مجاهدین، پوهان، لیکوال او شاعران روزلي دي. هر یوه پر خپل مهال خپلو خلکو او خاورې ته نه هېرېدونکي خدمتونه کړي او خپل نومونه یې تلپاتې کړي دي. د هغوی پېژندل زموږ د هر یوه افغان دنده ده. موږ ته ښایي د هغوی کارنامې یادې وساتو او ویاړ پرې وکړو.

میرویس نیکه د نومیالیو ملي مشرانو او ملي اتلانو له ډلې څخه دی. نوموړي له غلیم څخه د هېواد په آزادولو کې ستر رول لوبولی دی. له همدې امله یې نوم زموږ د هېواد د تاریخ په زرینو پاڼو کې ښکل شوی دی.

میرویس خان پر ۱۰۸٤ هـ ق / ۱٦۷۳م کال کې زېږېدلی دی. پلار یې ښالم خان نومیده چې د هوتکو د قوم یو منلی مشر و. مور یې نازو انا د سلطان ملخي توخي لور وه. نازو انا به په اوداسه خپل زوی ته شیدې ورکولې او د هغه پالنه او روزنه یې په اسلامي او ملي ارزښتونو وکړه.

میرویس خان په زلمیتوب کې د وخت زیاتره دودیز علوم لوستي وو. پښتو، فارسي او عربي ژبې یې ښې زده وې. له زده کړو وروسته په سوداګرۍ بوخت شو. له خراسانه به یې مالونه هندوستان او له هغه ځایه به یې هیواد ته راوړل، ګټه به یې هم کوله او د نوروخلکو له حاله به هم خبرېده.

صفوي شاه حسین پر ۱۱۰٦ هـ ق / ۱٦۹٤ م کال په ایران کې پاچا شو. د ګورجستان اوسېدونکی،



ګورګین ګورجي چې نوی مسلمان شوی و، کندهار ته د خپل حکومت د استازي په توګه را ولېږه. ګورګین ډېر ظالم او سخت زړی انسان و، پر افغانانو يې ظلمونه پيل کړل. څوک نه و چې ددې بې ګناه خلکو غږ واوري. د خلکو غږ تر هيڅ ځايه نه رسيده. ډېر افغاني مشران د ګورګين له خوا ووژل شول. د خلکو د اميد ستر ګي يوازې او يوازې ميرويس خان ته چې د هوتکو مشر و، اوښتې وې. له هغه څخه يې د مرستې غوښتنه وکړه. ميرويس خان هم د خپلو خلکو او هيواد خدمت تر هرڅه ښه وباله، سوداګري يې پرېښوده، د هيواد خدمت ته يې ملا وتړله. لومړی يې د خلکو تر منځ ملي يو والی رامنځ ته کړ او بيا يې ګورګين ته ځان نژدې کړ، خو ګورګين پر ده بې اعتباره شو، دی يې په ۱۷۰۷م کال اصفهان ته ولېږه. شاه حسين ته يې په پټه حال ولېږه چې هلته يې نظربند کړي.

شاه حسين صفوي ميرويس خان هلته نظربند کړ، خو ميرويس نيکه په خپل خدای ﷻ ورکړي استعداد، د اصفهان په دربار کې نفوذ وکړ. د ميرويس خان پوهې او قوي منطق، نه يوازې ډېر ژر دی له بنده خلاص کړ، بلکې په ډېر درناوي يې حج ته د تللو اجازه هم ورکړه. تر حج وروسته بېرته د اصفهان دربار ته راغی او له هغه ځايه يې ګورګين ته د سلاکار او ښاروال په توګه د مقررۍ رسمي فرمان واخيست او کندهار ته راغی.

ميرويس خان په کندهار کې د ولسي پاڅون لپاره يوه جرګه جوړه کړه او پرېکړه يې وکړه، لومړی دې د بلوڅو، ترينو او کاکړو خانان دې ته وهڅول شي چې صفوي حکومت ته د ماليې له ورکولو څخه ډډه وکړي، هغوی همداسې وکړل. ګورګين خپل شپږ زره کسيز لښکر ژوب او بلوچستان ته ولېږه، په خپله هم ورپسې رهي شو او له ميرويس خان څخه يې هم وغوښتل چې هلته ورشي. ميرويس خان له اوو زرو پښتنوعسکرو سره هلته ځان ور ورساوه. د شپې يې پر ګورګين حمله وکړه. هغه او د هغه ټول کنډک يې له منځه يوړ. په خپله يې د ګورګين کالي واغوستل او د هغه د وژل شوو پوځيانو کالي يې خپلو پوځيانو ته واغوستل.

د کندهار د ښار ساتونکو چې کله خپل عسکر په راتلو وليدل، د کندهار ښار دروازې يې ورته بېرته کړې، ميرويس خان کندهار ښار ته ننوت او د ايراني پوځ په وژلو يې لاس پورې کړ. ښار يې ونيو او ملي جرګه يې راوبلله. ملي جرګې دی پر ۱۱۱۹ هـ ق (۱۷۰۹م) کې د مشر په توګه وټاکه.

ميرويس نيکه له ټاکل کېدو وروسته د کندهار ښار ديوالونه ترميم کړل، په ښار کې يې غله او وسله جمع کړه، د کندهار ښار خلک يې سره راټول کړل او ورته يې وويل:

«که چېرې په تاسو کې داسې خلک وي، د آزادۍ پر دې لوی نعمت چې موږ په ډېره آسانۍ سره ترلاسه کړی، خوښ نه وي، هغوی دې ځان ښکاره کړي او له دې جرګې څخه دې ووځي، هېڅوک به په هغوی غرض نه کوي. داسې خلک بې شکه ددې آزاد رياست له پولې نه بهر د يوه نوي



ظالم پاچا تکل کولای شي.»

میرویس خان د واک له تر لاسه کولو وروسته د کندهار چارې برابرې کړې، له ابدالیانوسره یې د روغې جوړې تګلاره تعقیب کړه، بلوڅان یې وستایل، د هند له ګورګاني دربارسره یې د نژدې اړیکو لپاره له هغه هیواد سره د سوداګرۍ راکړه، ورکړه پیل کړه. افغان غازي د هیواد له آزادولو او د کندهار د چارو له سمون وروسته په ۲۸ د ذوالحجه حرام، ۱۱۲۷ هـ (۱۷۱۵م) کال له دې فاني نړۍ څخه سترګې پټې کړې، د تلپاتې دنیا په لوري یې روح والوت او کندهار ښار ته نژدې د کوکران په سیمه کې خاوروته وسپارل شو. پښتانه، ملي مشر میرویس خان د هغه د خدمتونو له امله د «نیکه» په لقب یادوي او ډېر درناوی یې کوي.

د میرویس نیکه مشهوره وینا ده چې وایي: «که تاسو سره یو نشئ، د پردیو جغ له خپلو اوږو لرې کولای نشئ!»




زده کوونکي دې په مناسبو ډلو ووېشل شي او هره ډله دې په غور ولیکي، چې څنګه کولای شي لا له همدې شېبې څخه هېواد ته د خدمت جوګه شي، ټولې په پام کې نیول شوې دندې دې په یو لېست کې ولیکي او د هرې ډلې استازی دې یې نورو ته واوروي.




۱ - ستاسو په فکر د هېواد د خپلواکۍ اخیستل آسان دي، که ساتل یې؟

۲ - درې تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او د ملي مشر د ځانګړتیاوو په اړه دې خبرې وکړي.

۳ – دا وینا: «یا به یو کیږو، یا به ورکیږو!» څه معنا لري؟




زده کوونکي دې په یوې مقالې کې ولیکي چې د ملي مشرانو پر ژوندلیک پوهېدل څه ګټه لري.



اووم لوست

# پر شخصي ګټو د ملي ګټو غوره بلل

هر انسان پر خپلې ګټې خوشالیږي او د ځان په ګټه د هغې د کارونې لپاره هڅه او هاند کوي. د هغې د ساتنې او له هغې څخه د دفاع لپاره مقاومت کوي. د یوې ټولنې د وګړو ګټې کومې دي؟

د شخصي او عمومي ګټو تر منځ توپیر څه شی دی؟ تاسو کومه یوه ګټه غوره بولئ او ارزښت ورکوئ؟

په دې لوست کې به دې پوښتنو ته ځوابونه ترلاسه کړئ.

## د خصوصي او عمومي ګټو پېژندنه

د هرې ټولنې وګړي ډېرې ګټې لري. ددې ګټو یو شمېر په خپله په انسان یا د هغه په کورنۍ او نژدې خپلوانو پورې اړه لري، خو یوه برخه یې د ټولنې په ټولو وګړو پورې اړه لري. لومړي ډول ته یې خصوصي یا شخصي ګټې او دویمې برخې ته یې عمومي ګټې یا ملي ګټې ویل کیږي.

په پانګه والو نظامونو کې د وګړو پر اصالت ټینګار کیږي، د یوه وګړي ګټې پر عامه ګټو غوره بلل کیږي، د وګړي لاسونه یې د هغه د غوښتنو په ترلاسه کولو کې پرانیستې پرېښي وي. په وړاندې یې په ولسواکو نظامونو کې فردي ګټې له منځه ایستلي او عمومي ګټو ته یې غوره والی ورکړی دی. د اسلام سپېڅلي



دین پر اعتدال او منځلاریتوب ټینګار کوي، هم شخصي او هم عمومي ګټو ته ارزښت ورکوي. په ځینو ځایونو کې عمومي ګټې پر شخصي ګټوغوره بولي.

## عمومي ګټې پر شخصي ګټو ړومبی کول

د یوې ټولنې زیاتره ستونزې او ګډوډۍ له همدې ځایه پیلیږي چې وګړي یوازې او یوازې د خپلو شخصي ګټو په اړه سوچ کوي او خپلو عمومي ګټو ته پام نه اړوي. په بله وینا عمومي ګټې خپلې نه ګڼي. په داسې حال کې که ښه پام وکړو، په حقیقت کې عمومي ګټې د ټولنې د هر وګړي ګټې دي، له دې امله عمومي ګټې پر شخصي ګټو غوره دي؛ ځکه له شخصي ګټو څخه یوازې د مال خاوند ګټه اخلي، خو له عمومي ګټو څخه هم پخپله یو وګړی او هم ټوله ټولنه ګټه پورته کوي. که چېرته شخصي ګټې پر عمومي ګټو غوره وبلل شي، زیان یې د یوې ټولنې ټولو خلکو ته رسیږي.

## عمومي ګټو ته د زیان رسولو بېلګې

• که یو څوک د خپلو ګټو لپاره د نورو پر حقونو او شتو ګېډه واچوي، که چېرته یو شخص یا یو بانک د ګټې اخیستلو (سود) له لارې مخکې لاړ شي، سلګونه او آن زرګونه خلک زیان مومي.

• که یو څوک پر غلا، بډو اخیستلو او یا اختلاس لاس پورې کړي، سلګونو خلکو او عامه شتمنیو ته زیان رسیږي.

• که یو سود اګر پر احتکار او چلوټۍ لاس پورې کړي، ټولو خلکو ته یې زیان رسیږي. له همدې امله اسلامي شریعت د احتکار او چلوټۍ عملونو ته دنیوي او اخروي سزا ټاکلې ده.

• که یو وګړی د خپلې شخصي ګټې لپاره عامه لاره وتړي، یا یې په خپل کور یا هټۍ کې ننباسي، یا د خپل کور خځلې او چټلې په لاره او کوڅه کې واچوي، په دې ټولو حالتونو کې نورو ته زیان رسوي چې دا یې د انساني اخلاقو او اسلامي شریعت څخه یو مخالف عمل ګڼل کیږي.

• که یو څوک د خپلې شخصي ګټې لپاره د خلکو د څښلو اوبه ککړې کړي، یا په استوګنځایونو کې د کارخانو په جوړولو چاپېریال ککړ کړي، یا د کومې هټۍ یا هوټل څښتن پاتې شوي او غیر صحي خوراکي توکي پر خلکو وپلوري، په حقیقت کې یې عامه ګټو ته زیان رسولی دی.

• که یو زده کوونکی ښوونځي ته په لاره یو څوک وځوروي، د خلکو کورونو ته ډبرې واچوي، پر دېوالونو خط راکاږي، د خلکو د تګ راتګ لاره بنده کړي، د نجونو د ښوونځیو مخې ته راټول شي، د ښوونځي میزونو او څوکیو او نورو توکو ته زیان ورسوي، په حقیقت کې یې عمومي ګټو ته زیان رسولی او خلک یې ځورولي دي.



يو هېوادپال او نېک وګړی هغه څوک دی چې عمومي ګټې پر شخصي ګټو غوره وبولي او د عامه شتمنیو د ساتلو او څارلو په لاره کې هلې ځلې وکړي او نور هم پرې نږدي چې ملي او عمومي ګټو ته زیان ورسوي.



## فعالیت

زده کوونکي دې په درېو ډلو ووېشل شي. هره ډله دې پر شخصي ګټو د ملي او عمومي ګټو د غوره بللو په اړه په خپل منځ کې خبرې وکړي. په پای کې دې د هرې ډلې استازی د ټولګي مخې ته راشي او د خپلې ډلې د خبرو نتیجه دې نورو ته وړاندې کړي.



## ارزونه

١ – ملي ګټې له عمومي ګټو سره څه توپیر لري؟
٢ - که شخصي ګټې پر ملي او عمومي ګټو دمخه شي، څه ستونزه رامنځ ته کیږي؟
٣ - ښه هېوادوال د ملي او عامه ګټو په ساتلو کې څه رول لوبولای شي؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د عامه ګټو د ساتلو او خوندي کولو په اړه یوه مقاله ولیکي.





# له اسلامي امت سره د افغانانو تړاو

## (د يو واحد امت په توګه)

هر ملت يو لړ داسې اصول او لارې چارې لري چې د هغه ولس د ژوندانه بنسټونه جوړوي. د هغه ولس وګړي د دغو اصولو او لارو له مخې له نورو ولسونو څخه بېليږي. له اسلامي نړۍ سره د يوه واحد اسلامي امت په توګه د افغانانو اړيکې هم دغسې اصول او لارې چارې لري چې د هغوی په لرلو له نورو امتونو څخه بېليږي.

د اسلامي امت اصول او بنسټونه کوم دي؟ اسلامي ستر امت څنګه رامنځ ته شوی دی؟ د هغې ځانګړتياوې کومې دي؟ افغانستان د مسلمان امت په ليکه کې څنګه دريځ لري؟

په دې لوست کې به د پورته پوښتنو ځوابونه تر لاسه کړئ.

### د اسلامي امت بنسټ

د اسلام پيغمبر حضرت محمد صلی الله عليه وسلم له بعثت وروسته د اسلامي امت د بنسټ لومړۍ خښته کېښوده. اسلامي امت د نړۍ پر مخ د نورو امتونو په خلاف، يوازينی امت دی چې د توحيد پر عقيدې ولاړ دی. اسلامي امت د يوه خدای پالنه کوي، د اسلامي امت کتاب يو او د هغوی پيغمبر يو



او قبله يې يوه ده. لوی خدای جل جلاله اسلامي امت داسې راپېژني: ﴿إِنَّ هَذِهِ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً وَأَنَا رَبُّكُمْ فَاعْبُدُونِ﴾ [سورة الانبياء: ۹۲]{ژباړه: «دا امت، ستاسو يوازېنی امت دی او زه ستاسو رب يم، نو يوازې زما عبادت [اطاعت] وکړئ.»

اسلامي امت په ټولې نړۍ کې خپور دی، ددې امت کتاب او قانون (قرآن کريم) جهاني کتاب او ټول بشريت ته نازل شوی دی. الله جل جلاله فرمايي: ﴿إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ لِلْعَالَمِينَ﴾ [سورة يوسف: ۱۰٤]

ژباړه: «دا کتاب (قرآن کريم) ټولو نړيوالو ته له نصيحت پرته بل څه شی نه دی.»

د اسلام ستر پيغمبر حضرت محمد صلی الله عليه وسلم پر ټول بشريت مبعوث شوی دی، لکه چې لوی خدای د هغه په اړه فرمايلي دي: ﴿وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا كَافَّةً لِلنَّاسِ بَشِيرًا وَنَذِيرًا﴾ [سورة سبأ: ۲۸]

ژباړه: «موږ ته ټولو انسانو ته زېرې ورکوونکی او ډاروونکی لېږلی يې.»

د اسلام د همدې نړيوالتوب له امله د اسلام د سباوون په هماغه پيل کې ابوبکر عربي، بلال حبشي، صهيب رومي او سلمان فارسي د اسلامي امت په لومړنۍ هسته کې ځای ومومند.

## د اسلامي امت په منځ کې د افغانستان دريځ

افغان مسلمان امت د اسلامي امت نه بېلېدونکی ټوټه ده او د افغانستان خاوره د اسلامي عالم ارزښتمنه او ګټوره تاريخي سيمه ده. ددې خاورې تر ټولو لوی وياړونه د اسلام په سيوري کې د اسلام په نامه د افغان ولس په برخه شوي دي.

له هغه مهاله چې ددې خاورې اوسېدونکي د اسلام پر سپېڅلي دين مشرف شوي، د اسلام د ځلېدونکي مرکز په توګه يې دعوت او جهاد، معرفت او آزادي د نړۍ ګوټ ګوټ ته رسولې او ددې خاورې نوميالي زامن د اسلامي امت په ليکه کې د علم او پوهې، بلنې او سياست، آزادۍ او زړورتيا د بيرغچيانو په توګه پېژندل شوي دي.

امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله له همدې خاورې څخه پورته شوی او د فقهي د مذهبونو مخکښي يې ترلاسه کړې. سلطان محمود غزنوي او احمدشاه ابدالي له همدې سيمې څخه د اسلام بيرغ د هند په نيمې وچې او د ګاونډۍ سيمې، خراسان په پراخو او پلنو ځمکو د بت او شرک پالنې پر کنډوالو پورته کړی دی. سيد جمال الدين افغاني له همدې علم او فرهنګ روزونکې زانګو څخه سر رااوچت کړی، د اسلامي يووالي او د استعمار په وړاندې يې د مبارزې لپاره ولسونه راويښ کړي دي. د افغانستان



مسلمان ولس د خپلواکۍ د بېرته اخیستلو د مخکښانو په توګه د آزادۍ او خپلواکۍ لوست د نړۍ هېوادونو ته ورزده کړی دی. د افغانستان خلکو د شلمې پېړۍ په اوږدو کې د ایمان او هېوادپالنې په قوت د نړۍ دوو سترو زبرځواکونو، انګلیس او پخواني شوروي اتحاد ته غاښ ماتوونکې ماتې ورکړې او له خپلې پاکې خاورې څخه يې شړلي دي. د افغانستان مسلمان ولس تل د مسلمانانو د يووالي او له اسلامي پېښو سره د زړه سوي له امله، په ځانګړې ډول د فلسطين د موضوع په اړه، مخکښ رول لوبولی دی.

په مقابل کې د ټولې نړۍ اسلامي امت ته د افغانستان خاوره ګرانه او ددې باتور او مېړني ولس وګړو ته د درناوۍ په سترګه ګوري. د افغانستان د خپلواکۍ غوښتونکو مبارزو په لړ کې د ټولې نړۍ مسلمانان د افغانستان د مسلمان ولس تر څنګ ولاړ وو چې ډېره ښه بېلګه يې د پخواني شوروي اتحاد د يرغل په وړاندې د جهاد په کلونو کې د افغانستان له خلکو سره د ټول اسلامي امت مسلمانانو ګډون کړی او زيات شمېر يې د شهادت جامونه څښلي دي.

په دې توګه د افغانستان ولس کولای شي له اسلامي ستر امت سره د خپل پيوستون اوټينګو اړيکو له امله خپل وياړ، درناوی او عزت وساتي. سره له دې کله ناکله د دې خاورې د عزت او آزادۍ دښمنانو د تاريخ په ځينو پړاوونو کې هڅه کړې، له اسلامي امت سره د افغانستان د ولس اړيکې خرپړ کړي او له يو بل يې جلا کړي چې له امله يې د دې خاورې هېوادپالونکو او مؤمنو خلکو ډېر ستر زيانونه ليدلي او سرونه يې ښندلي دي.

د افغانستان خلکو او سياستوالو ته په کار ده له اسلامي ستر امت سره د افغانستان د مسلمان ولس د پيوستون په اړه خپلې دندې او ورسپارل شوي مسؤوليتونه سرته ورسوي. د اسلامي امت او اسلامي نړۍ له ورټياوو څخه د سولې او امنيت، ودانۍ او بيارغاونې او د افغانستان د خلکو د سوکالۍ او پرمختګ لپاره سمه ګټه پورته کړي.

### څرګندونې

په عربي ژبه کې د قرآن کريم له مخې «امت» څو معناګانې لري:

- د خلکو يوه ټولګه چې پيغمبر ورته راليږل شوی وي، لکه اسلامي امت، چې الهي وروستی پيغمبر، حضرت محمد مصطفی صلی الله عليه وسلم ورته د لارښوونې لپاره مبعوث شوی دی.



- هغه چاته چې د خير او نېکی ټول فضايل پکې راټول شوي وي، لکه د خدایﷻ دا وینا: ﴿إِنَّ إِبْرَاهِيمَ كَانَ أُمَّةً قَانِتاً لِلّهِ حَنِيفاً..﴾ [النحل: ۱۲۰]؛ يعنې، ابراهيم (خليل) مطيع، فرمان ورونکی او واحد ملت و، هېڅکله يې له خدایﷻ سره شريک ونه نيو.

- د وخت يوې مودې ته ويل کيږي، لکه د متعال خدایﷻ دا وینا: ﴿وَقَالَ الذي نَجَا مِنْهُمَا وادكر بَعْدَ أُمَّةٍ..﴾ [يوسف: ٤٥] له هغو دوو څخه يو (د يوسف زنداني ملګري) وويل، چې ژغورل شوی و او د يوې مودې (څو کاله) له تېرېدو وروسته يې يوسف ياد شو.




زده کوونکي دې د اسلامي امت د بشري او اقتصادي امکاناتو او ځانګړتياوو په اړه خبرې وکړي.




۱ – څو تنه زده کوونکي دې د مبارکو قرآني آيتونو او نبوي احاديثو او د اسلام د ستر پيغمبر د عملي سيرت پر بنسټ د اسلامي امت د نړيوالتوب په اړه خبرې وکړي.

۲ – هغه مهمې ځانګړتياوې کومې دي چې اسلامي امت له نورو امتونو څخه بېلوي؟

۳ – د اسلامي امت په ليکه کې د افغان مسلمان امت دريځ له فکري، علمي، جهادي، سياسي او د خپلواکۍ غوښتلو له پلوه روښانه کړئ.

٤ – له اسلامي امت سره د افغانستان د مسلمان ولس د پيوستون څو بېلګې وړاندې کړئ.




افغانستان څنګه کولای شي د اسلامي امت له سرچينو او وړتياوو څخه د سولې او امنيت د تأمين لپاره کار واخلي؟ په دې اړه دې زده کوونکي يوه په زړه پورې مقاله وليکي.



# د یوه باغ ګلان

په دې لوست کې شاعر خپل هېواد له یوه بڼ سره پرتله کړی دی. بڼ پر ګلانو او شنو بوټو ډېر ښایسته وي. د بڼ ښکلا هم د ګلانو رنګارنګي او د شنو بوټو او ونو ډېروالی دی. هر ګل او هر بوټی خپل ځای لري. د یوه ولس او هېواد حال هم همداسې درواخله. هر هېواد له بېلابېلو قومونو، توکمونو او کورنیو څخه جوړ وي. د ګلانو د رنګ توپیر او په هېواد کې د قومونو او توکمونو توپیر د بڼ او هېواد ښکلا ده. له هغه څخه د توپیر تعبیر اخیستل ناسمه خبره ده. مور ته ښايي هر یو له خپلو استعدادونو او وړتیاوو او ځانګړتیاوو سره سم د هېواد په ودانۍ کې خپله ونډه سرته ورسوو.

ستاسو په اند یو هېواد په یووالي ودانیږي که په بې اتفاقۍ او ځانځانۍ؟

یـوه بـاغ کـې وې ولاړې ډېـرې ونـې
هــره پـاڼــه یې لایقـه د ستـاینې
خوا په خوا غاړه په غاړه خوله په خوله وې
لـه یوې خــاورې پیدا د یوکاله وې
لـــه یـــوې ویالـــې اوبـه ورتــه راتللې
پــه یـــوه هــوا کې ټولې لویېدلـې
ددې ټــولــو یــو خـــزان او یو بهـار و
ښه او بـد یې و شریک یو یې واکدار و

ځيني جگـې ځيني ټيټې کـوزو پاس وې
لکــه گــوتې د يوه وجود د لاس وې
چـــا مېوه لــرلــه چــا ښايسته گـلـونـه
د چـــا سيورى و ډېر ښه د چا قـدونه
چنــار لـــوى و شفتالــو لکـه ماشوم و
د منې او ناک توپير لــه ورا معلوم و
لـــه يـــوه سره لـــويي وه نـــور څه نه و
بل سره رنگـــونه ښه، خـوندونه ښه و
د مـــرغـانـو نغمې وې پکـــې څــو رازه
هـــر مـــرغـــه مو پېژانده له خپل آوازه
رنگارنگ گلـــونه وو يـــوه چمن کـــې
لکــــه وي چې ولسونه په وطن کې
هر يو بوټى په خپل ځـاى کې سر بلند و
د باغبان سترگـــو کې هر يو ارجمند و
په حقـــونـو کـــې يې نـه و څـــه توپير
ماليـــار و په هـــرې ونې ډېر زهير
يو لـــه بله يې په هر حـــال کې شرکت و
په تمـــامـــه معنــا يـــو صحيح ملت و
لکـــه بـــاغ يـــو ملـک وگـڼـه وروره
پکــــې هـــر قسم گلـونه بوټي گوره
ونې ډېرې خـــو باغ يو دى کــه پوهېږې
که کـــوې بل رنگـه فکر ډېر غولېږې
دوه سکـــــه وروڼه لـــري بېل بېل نومونه
بېل رنگـــونه بېل غـــړونه بېل خويونه
مگـــر دواړه اوسېدونکي د يو کـور وي
د يوې سترگې په کور کې سپين او تور وي
گل پاچا الفت



په پورته شعر کې شاعر هېواد له باغ سره پرتله کړی. شاعر هېواد داسې یوه باغ ته ورته ګڼلی چې ښایسته او رنګارنګ ګلان او شنې ونې لري. د ګلانو رنګیني او د رنګ او بوی بېلوالی د باغ زینت او ښکلا بولي. شاعر د ولس خلک هم د یوه باغ ګلان ګڼلي، د خلکو او توکمونو بېلوالی د رنګ او بوی بېلوالی بولي. د خلکو د ژبو توپیر د مختلفو الوتونکو نغمو ته ورته ګڼي چې هر الوتونکی له خپل اوازه پېژندل کیږي. که په باغ کې ګلان هرڅومره ډېر وي، خو باغ او باغوان یې بیا یو وي. د یوه کور د دوو ورونړو نومونه هم سره بېل وي، خو یو بل ته د سترګو د کسو په څېر ګران وي.



## فعالیت

په باغ کې له بېلو بېلو او رنګارنګ ګلانو څخه د شاعر مطلب څه شی دی؟ زده کوونکي دې په دې اړه خبرې وکړي.



## ارزونه

١ - د خپلمنځي یووالي لپاره په هېواد کې اوسیدونکوبېلابېلو توکومونو ته څه کول په کار دي؟

٢ – د یوه بل منل، زغم او تېرېدنه د ګډ ژوند اړین توکي دي. دا موضوع نورو ته روښانه کړئ.

٣ - د یوه ځوان په توګه تاسې باید د ورونو قومونو د یووالي او وحدت د تامین په اړه کوم کارونه سرته ورسوئ؟

٤ - د ملي یووالي او ملي ګټو د خوندي کولو او ځان تېرېدنې په اړه به نورو ځوانانو ته ستاسو پیغام څه وي؟



## کورنۍ دنده

ولې باید د شخصي ګټو پر ځای ملي ګټې غوره وبلل شي؟ په دې اړه لس کرښې مقاله ولیکئ او د مضمون په بل ساعت کې یې ټولګیوالو ته واوروئ.







# ملي او تاريخي وياړونه

تاسو په تېرو لوستونو کې د ملي ارزښتونو او ملي مشترکاتو په اړه معلومات ترلاسه کړل. په دې لوست کې د ملي او تاريخي وياړونو په اړه معلومات تر لاسه کوئ. د دغو وياړونو پېژندل، د هغوی ساتنه او درناوی او د نورو هغو رامنځ ته کول زموږ او ستاسو د ټولو دنده ده.
ملي او تاريخي وياړونه موږ او تاسو ته د څا کارنامې راپه زړه کوي؟
آيا يوازې په تېرو تاريخي وياړونو بسنه کوئ او که موږ او تاسې هم بايد هېواد او هېوادوالو ته نور وياړونه هم ور په برخه کړو؟

ملي او تاريخي وياړونه زموږ د نيکونو، غازيانو، شهيدانو او ملي اتلانو د بېشمېره سرښندنو، مبارزو او مجاهدتونو لاسته راوړنه ده. د ملي او تاريخي وياړونو په ګټلو کې زموږ پلرونو او نيکونو ډېرې ستونزې ګاللې او ډېرې قرباني يې ورکړې دي.

## استقلال او خپلواکي

استقلال او خپلواکي زموږ د هېواد ستر وياړ دی. زموږ د هېواد خپلواکي په خپله منځ ته نه ده راغلې، بلکې زموږ پلرونو او نيکونو د خپلو وينو په بدل کې تر لاسه کړې او موږ ته يې د امانت په توګه راسپارلې ده. موږ ته ښايي پر هغې وویاړو او د ساتلو لپاره يې سرښندنو ته چمتو واوسو. د خپلواکۍ



په ترلاسه کولوکې زموږ د هېواد له هر ګوټ څخه باتورو شازلمیانو برخه اخیستې، له دې امله یې د هېواد ټول خلک د ساتلو وياړ لري. له مقدوني سکندر څخه نیولې تر وروستیو یرغلګرو پورې چې کله پر هېواد تېرى شوى، ټولو هېوادوالو په ګډه د غلیم په وړاندې توره له تېکي راايستلې او دښمن ته یې غابښ ماتوونکي ګوزارونه ورکړي دي.

کومې ودانۍ او څلي چې د خپلواکۍ د یاد ساتلو په موخه په هېواد کې جوړ شوي، ددې وياړونو ياد ژوندى ساتي. د بېلګې په توګه: د میوند څلي، طاق ظفر او نور. د میوند څلی موږ ته د میوند په جګړه کې د میوند د فاتح، سردار محمد ایوب خان او د ملالۍ اتلولي راپه زړه کوي او موږ ته سپارښتنه کوي چې د هغې یاد تازه وساتو او پر پله یې پل کېږدو. طاق ظفر موږ ته د اعلیحضرت غازي امان الله خان په مشرۍ د انګریزانو په وړاندې د خپلواکۍ ترلاسه کول يادوي او دنده راکوي چې د ساتلو لپاره یې له هیڅ ډول سرښندونو څخه په ډډه نشو.

## ملي هویت

ملي هویت زموږ بل ګډ وياړ دی. لکه چې په دمخه لوست کې ورته ګوته نیول شوې، ملي هویت زموږ د ټولو افغانانو د وحدت او یو موټي توب وياړ دى. زموږ ملي هويت زموږ د نارينتوب، ميړانې، زړورتیا، تورې، غیرت، حیا، جنګ او سولې، سخا او ورکړې، مېلمه پالنې او بې شمېره نورو ځانګړتیاوو ټولګه ده. موږ، افغانان خپل ملي هویت د ځان وياړ ګڼو.

یو انګرېز افسر لیکي، «که له یوه افغان څخه وپوښتې، څوک یې، نو دی به بې له ځنډه په ډېر غرور درته وايي، چې ((افغان یم، افغان!)) په داسې غږ چې لکه هغه بادار وي او ته نوکر.» دا خبره پر ملي هویت د وياړ ښه څرګندونه کوي، چې آن پردیو ته هم څرګنده ده.

## ملي بیرغ، ملي نښان، جرګه

ملي بیرغ، ملي نښان، ملي جرګې او نور منلي دودونه زموږ ملي وياړ ګڼل کيږي. ملي مشران، مجاهدین، پوهان، لیکوال او شاعران زموږ د ټولو د وياړ نښې دي. د هغوى درناوى او پر ژوندلیک یې پوهېدل زموږ دنده ده.

موږ ته ښايي چې خپل ټول ملي وياړونه وساتو، درناوى یې وکړو او په ځانونو کې دا وس پيدا کړو، چې خپلو راتلونکو نسلونو ته د خپلو پلرونو اونیکونو په څېر وياړونه پرېږدو او د هغوى د سوکالۍ او نېکمرغۍ لپاره کار او هلې ځلې وکړو.





## فعالیت

زده کوونکي دې په مناسبو ډلو کې د ملي ویاړونو په اړه خبرې اترې وکړي.



## ارزونه

١ – پر خپل تاریخ یا د خپلو پلرونو او نیکونو پر کارنامو ویاړ موږ ته څه ګټه رسوي؟
٢ – یو تن زده کوونکی دې د خپلواکۍ د ساتلو د لارو چارو په اړه خپل نظر څرګند کړي.
٣ – څنګه کولای شو هېواد ته د خدمت ویاړ تر لاسه کړو؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کورونو کې څینې ملي او تاریخي ویاړونه په ګوته کړي او د هر یوه په اړه دې یو، دوه کرښې ولیکي.
ویې ولولئ او خوند ترې واخلئ:

### د وطن پالنه

| | |
|---|---|
| لکه شمع کــه ځــان وسوزې پـه اور ته | نو به هلــه کــړې رڼا مینه او کــور ته |
| که فرهاد غوندې دې غرونه سوري نه کړه | د شیرین وطن په عشق کې یې نام تور ته |
| په خولــو یې د تندې کـــه آبیاري کــړې | د وطن د ګلــو باغ به کــړې سمسور ته |
| کــه په اور اوبو کې تېغ غوندې غوټه شې | نو پـــه سر به د دښمن شې هلـه سور ته |
| لکـــه ونه کــه بار نه کــړې په سر پېټی | نو به وچې کړې خولې له مـخ د ورور ته |
| د یومبې غوندې ځـان ورکړه حلاجي ته | چې کړې پټ د خپل وطن لوڅ او سر تور ته |
| که د ځمکې هومره لوی یې حرکت کړه | تنبلي او سکـــون بوله لـــوی پېغـــور ته |
| د وطـن آب و آبرو دې کـــه شوه تـویه | په سیالانو کې به سرجګ نه کړې نور ته |
| دا اوبه چې ته یې څکـــې د وطن یې دي | نـــو وطن بوله په شـــان د خپلې مور ته |
| چا چې ایښی په دې تې در سره خوله ده | هغه خـــور او ورور ګڼه د سترګو تور ته |
| هېڅکلـــه پـــه بد نظـر ورته مـــه ګـوره | لکه ځان د هغـــه هم اوسه غمخـور ته |

په "الفت" به بېګانه او پردي خپل کړې!
وبـــه نه کړې دغـــه کـار په زر او زور ته





## احمدشاه بابا پر دین، هېواد او خلکو مین پاچا

په تېرو لوستونو کې مو ولوستل چې زموږ لرغونی هېواد، ګران افغانستان د نومیالیو ټاټوبی دی. په خپله لمن کې یې پوهان، سیاستوال، مشران، لیکوال، شاعران او باتور مېړني روزلي دي. د هغوی پر ژوندلیك پوهېدل او د هغوی د ښو پر پلونو پل اېښودل زموږ د راتلونکي ژوند مشال دی. د پوهانو کړنلاره او تګلاره، پوهه او تجربې د راتلونکو نسلونو لارښوونه ده. په دې ډله کې مو څو تنه نومیالي وپېژندل او د ژوند پر خرنګوالي یې پوه شو. په دې لوست کې داسې یو پاچا درپېژنو چې پر واکمنۍ سربېره پر دین، مذهب ولاړ، په هېواد او هېوادوالو مین او د انسان په تېره بیا د مسلمان مینې او محبت د هغه په زړه کې ژور ځای درلود. دا واکمن د افغانستان ملي مشر او پاچا، احمدشاه بابا دی.

آیا تاسو ته له هېواد سره د مینې په اړه د احمدشاه بابا کوم شعر په یاد دی؟

احمدشاه ابدالي د هرات د حکمران، زمان خان زوی، په خټه ابدالي سدوزی و. په ۱۱۳۵ هجري قمري (۱۷۲۲ میلادي) زېږېدلی. مور یې زرغونه انا نومېده. سره له دې چې د عمر له مخې کوچنی و، خو د خپل سلطنت په وختو کې یې افغانستان ته سترخدمتونه کړي. له همدې امله ورته خلکو د بابا لقب ورکړی دی.

لوی احمدشابابا د اوسني افغانستان بنسټ ایښودونکی دی. هغه په افغانستان کې اداري، پوځي، مالي او مدني جوړښتونه رامنځ ته او وزیران یې وټاکل. پر ۱۱۷٤ هجري کال [۱۷٦۰ میلادي کال] یې د احمدشاهي ښار، په نامه د کندهار د اوسني ښار بنسټ کېښود. د کابل جنګي کلا یې ودانه او د هندوکش



په شمال کې يې د تاشقرغان ښار او په سند کې يې د حيدرآباد د ښار د بنسټ ډېره کېښوده.
د احمدشابابا د واکمنۍ په لومړيو کې کندهار، مشهد، اټک، ډهلی، روهيلکنډ، پېښور، ټټه، ډېره غازي خان، کشمير، کابل، ملتان او هرات شامل وو او په دغو سيمو کې يې په نامه سکه وهل کېده.
احمدشاه بابا متشرع، عالم او په ديني احکامو پابند سړی و. له شعر او ادب سره يې مينه درلوده. د پښتو اشعارو ديوان يې پر ۱۳۱۹هـ ش کال په کابل کې چاپ شوی. په دې دېوان کې د احمدشاه بابا عشقي، تصوفي، حماسي او اخلاقي وينا په دوه نيم زره بيتونو کې راغلې او د شعر نامتو ډولونه، لکه غزل، رباعي، قطعه، مخمس او مربع لري.
د احمدشاه بابا په کلام کې د تصوف بڼه ډېره څرګنده او ښکاره ده. اخلاقي او هېوادني اشعار هم پکې شته دی. احمدشاه بابا د دوو تنو عارفانو لاسنيوی کړی و. يو يې د جلال آباد د حصارك ميا فقيرالله، چې په ښکار پور کې ښخ دی او بل يې د پېښور د څمکنو ميا محمد عمر دی.
په سياست کې احمدشاه بابا تل د اسلامي ورورګلوۍ، نرمۍ او ملګرتوب پلوی و. په ډهلي، بخارا، خراسان، بلوچستان او سند کې يې له خپلو هممهالو اميرانو سره د روغې له لارې سوله ييز چلند درلود. پر شهنشاهي، برم او پوځي ځواک سربيره يې ټول هغه اميران څو، څو واره عفوه کړل چې سرکښي يې کړې وه. همدا راز نومورې تاج ببښنې هم کولې چې آن د هغه وخت سترګور او د نظر خاوندان د ده دې تاج ببښنې او د فکر پراخۍ ته حيران وو. د شاه ولي الله ډهلوي په وينا، د ابدالي دا چلن «د دې مادي دنيا په چارو کې حساب نه وه.»
احمدشاه بابا له فتوحاتو سره سره د مسلمانانو له وينو تويولو څخه ځان ژغوره. د جهاندارۍ په چارو کې يې له عدالت او نياو څخه کار اخيست، خلك يې د خپلو زامنو په شان پالل، نو ځکه افغانان ده ته «بابا» وايي. دا هغه لقب دی چې له ميرويس نيکه او عبدالرحمان بابا پرته د بل چا په برخه شوی نه دی.
احمدشاه بابا جنګيالی او فاتح و، خو دده له ټولو فتوحاتو او عسکري اعمالو څخه څرګنده ده چې لوټمار، ورانوونکی، ستم کاره او مظلوم وژونکی نه و. که يو کار به د روغې جوړې له لارې سرته رسېده، نو له مسلمانانو سره يې په جګړې لاس نه پورې کاوه. د ورور پرمخ يې توره نه ايستله.
احمدشاه بابا زموږ په ملي تاريخ کې د اوسني افغانستان د بنسټ ايښوونکي او د افغانستان د خلکو د برم او د يو ګډ هيواد او يو ولس جوړوونکي په حيث لوړ دريځ لري.
د شاه ولي الله ډهلوي او د نورو هندي مسلمانو نوميالو او اميرانو له ليکونو څخه داسې څرګندېږي چې احمدشاه بابا هند ته د هغه ځای د مسلمانانو د غوښتنې له مخې له ظلم څخه د هغوی د ژغورلو لپاره تللی و. د دې تر څنګ هغه نه غوښتل د خپل ملي قوت مرکز، افغانستان پرېږدي يا د جهاد فی سبيل الله نګه خدمت د دنيوي غوښتنو تر سيوري لاندې راولي او د ډهلي د پاچهۍ د نيولو او د جهانګيرۍ په حرص يې ککړ کړي. له همدې امله يې کټ مټ همدغه رويه څو واره د افغانستان له نورو ګاونډيو



امیرانو سره په بخارا، خراسان، سند او بلوچستان کې هم کړې ده.

احمدشاه بابا دده د اشعارو د دیوان په شهادت له خپل هېواد او خپلو خلکو سره توده مینه درلوده. پر احمدشاه بابا خپل هېواد تر بل هرځای ډېر ګران و. ده ډهلي ونیوه، خو هېواد يې هیر نه کړ او بېرته د خدمت لپاره خپل هېواد ته راستون شو.

احمدشاه بابا د خپل ژوند په پای کې د پرله پسې سفرونو د کړاو له امله کمزوری او له څو میاشتو رنځ وروسته د (١١٨٦هـ) کال د رجب پر شلمه د جمعې پر شپه وفات شو. د ده مړی کندهار ته راوړل شو او په هغه ځای کې خاورو ته وسپارل شو چې ده له مخه ټاکلی و. د مړینې پر مهال ٥١ کلن و او ٢٦ کاله پاچاهي يې کړې ده.

له هېواد او خلکو سره د احمدشاه بابا توده مینه د هغه له لاندې شعر څخه ډېره ښه څرګندیږي:

### تاته راشمه زړګی زما فارغ شي

| | |
|---|---|
| ستا د عشق لـه وینو ډک شول ځيګـرونه | ستـــا په لاره کې بایلي زلمي سرونه |
| تاته راشمه زړګـــــی زمـا فـارغ شي | بې لــــه تا مې اندېښنې د زړه مـارونه |
| که هر څو مې د دنیا ملـــکـونه ډېر شي | زما به هـېر نشي دا ستا ښکلـي باغونه |
| د ډهلي تخت هېرومه چـې را یاد کـــړم | زما د ښکلې پښتونخـوا د غرو سرونه |
| کـــه تمامه دنیا یو خـــوا تـه بل خوا يې | زما خوښ دي ستـا خالي تش ډګرونه |
| احمـــــدشاه به دغه ستا قـــدر هېرنه کا | که ونیسي د تمـــام جهـــان ملکـونه |



## فعالیت

زده کوونکی دې پر دربو ډلو ووېشل شي. د احمدشاه بابا په اړه دې خپل معلومات له یوه بل سره شریک کړي.



## ارزونه

١ – هند ته د احمدشاه بابا د سفر موخه څه وه؟ نوموړی د هغه هېواد د نیولو لپاره هلته تللی و، که کوم چا ورته د څه شي لپاره بلنه ورکړې وه؟

٢ – د پاچا په توګه د احمدشاه بابا ځانګړتیاوې کومې دي؟ بیان يې کړئ.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کورونو کې د هېواد په اړه د احمدشاه بابا د مينې په اړه څو کرښې مقاله ولیکي.





## هېواد پالنه، نه عصبيت

انسان ته خپل ټاټوبی او د خاپوړو ځای د طبيعي، فطري او انساني عاطفې له مخې ګران وي؛ ځکه هلته لوييږي، له اوبو او هوا او نورو نعمتونو څخه يې ګټه اخلي، له چاپېريال او ګاونډ سره مينه او الفت پيدا کوي او په توده غېږ کې يې خپل ژوند سرته رسوي.
موږ ولې او څنګه له خپل هېواد سره مينه لرو؟ د هېوادپالنې معيارونه څه شی دي؟ له نورو خلکو سره بايد څنګه چار چلن وکړو؟ هېواد پر موږ کوم حقونه لري؟ د هېواد حقونه څنګه سرته ورسوو؟

هېواد پالنه او له هېواد سره مينه، له هېواد څخه د ساتنې په لاره کې سرښندنه او د هغې د ودانولو، سرلوړۍ او پرمختګ په لار کې هلې ځلې يو غوره انساني صفت او ايماني او اسلامي ارزښت شمېرل کيږي.
د نړۍ قومونه او ولسونه هر يو د عاطفي تمايلاتو، د قومي او نژادي تړاو، ملي او تاريخي ګډو ټکو او د هېواد د نورو مادي او معنوي ارزښتونو پر بنسټ له خپلې خاورې سره مينه پيدا کوي، د هغې د پرمختګ او سرلوړۍ لپاره کار کوي او د خپلواکۍ او استقلال د ساتلو په لار کې يې له سرونو تېرېږي.



## اسلام له هېواد سره مینې ته هڅونه کوي

مسلمانان د اسلام د ګران پیغمبر صلی الله علیه و سلم د سنتو او اخلاقو او دیني لارښوونو پر بنسټ له خپل هېواد او ټاټوبي سره مینه لري؛ د هغې د ودانولو او رغاونې لپاره هلې ځلې کوي او د استقلال او ساتنې په لار کې یې په سر او مال جهاد کوي.

پیغمبر صلی الله علیه وسلم چې کله له خپل ټاټوبي، مکې مکرمې څخه وایستل شو، د تګ پر مهال یې مکې ته مخ واړاوه او ویې فرمایل: «ای مکې، ته زما لپاره د خدای د خاورې تر ټولو ګرانه خاوره یې! که اوسیدونکو [قریشو] دې زه نه وای ایستلی، ما ته نه پرېښودې.» له همدې امله متعال خدای له خپل پیغمبر سره ژمنه وکړه چې بېرته دې مکې ته راستنوم. د قادر او متعال خدای جل جلاله دا ژمنه د مکې په فتح رښتینې شوه.

اسلام د عقیدې او هېواد د دفاع او ساتنې او حفاظت لپاره جهاد فرض کړی دی. که چېرته موږ د تاریخ پاڼې واړوو، وبه ګورو چې د پیغمبر صلی الله علیه وسلم د بدر، اُحد، خندق او د خلفای راشیدینو او د اسلامي دورو په نورو پړاوونو کې نورې غزاګانې د عقیدې او اسلامي خاورې د دفاع په لاره کې سرته رسېدلې دي.

## هېوادپالنه، نه تعصب

د هېوادپالنې او عصبیت تر منځ ښایي توپیر وشي. د نړۍ زیاتره ولسونه، قومونه، ډلې او انسانان د هېوادپالنې تر نامه لاندې ژبنیو، قومي، سمتي او نژادي نا روا او ناوړه تعصبونو ته لمن وهي؛ د نړۍ نورو هېوادونو، خلکو او نژادونو ته په سپکه سترګه ګوري او د هغوی پر خاورې او ځمکه بریدونه کوي، اشغالوي یې او چور او چپاول پکې کوي چې تاریخ دا ډول ډېر تعصبات پر خپلو سترګو لیدلي دي. اسلام دا راز ټول تعصبونه ناروا او د رښتینې هېوادپالنې له روح او مفهوم سره مخالف بولي.

مسلمان هېوادپال له خپل هېواد سره ددې لپاره مینه کوي چې هلته د یوه او واحد خدای ﷻ عبادت او د خلکو خدمت سرته رسیږي. رښتینی هېوادپال تل د خپل هېواد د ودانولو، سمسورولو، عزت او سرلوړۍ او د خلکو د سوکالۍ لپاره رښتینې هلې ځلې کوي، د خپل هېواد او د خپلو خلکو خدمت د خدای عبادت او د ایمان برخه ګڼي. د اسلام ستر پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: «ایمان څو اویا څانګې لري چې تر ټولو لوړه یې ﴿لا إِلَهَ إِلا اللَّهُ﴾ ویل او ټیټه یې له لارې څخه د زیان رسوونکو شیانو لرې کول دي.»

مسلمانانو ته خپل هېوادګران دی، خو د نورو وګړو او قومونو په وړاندې له تعصب او ناوړه چلن څخه کار نه اخلي، د بل چا حقونه، نه تر پښو لاندې کوي او د نړۍ پر مخ د ټولو ملتونو، ولسونو، قومونو او



خلکو درناوی کوي؛ ځکه ځمکه د خدای جل جلاله مال دی او هر بنده ته چې یې وغواړي ورکوي یې. ښه پای یوازې د نېکو، صالحو او تقوا لرونکو بنده ګانو دی.



## فعالیت

انسانانو ته ولې خپل ټاټوبی ګران وي؟ زده کوونکي دې په دې اړه خپل نظر نورو ته څرګند کړي.



## ارزونه

١ – درې تنه زده کوونکي دې د هېواد پالنې څو بېلګې ووايي.
٢ –ولې انسانان له خپل ټاټوبي سره مینه لري؟
٣ –د نړۍ قومونه او ولسونه په کومو معیارونو له خپل هېواد او ټاټوبي سره مینه لري؟
٤ - له هېواد سره مینه څه معنا لري؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپلو کورنو کې له هېواد سره د مینې په اړوند یوه مقاله ولیکي.



## غازي میربچه خان کوهدامني

په تېرو لوستونو کې مو د هېواد د پوهانو، ملي مشرانو، لیکوالو، شاعرانو او بر هېواد او ولس مینو نومیالیو پر ژوندلیک لنډې خبرې وکړې. هغوی هر یو په خپل خپل ځای کې د قدر درناوي او ستاینې وړ دي. نومونه او اتلولۍ یې د تاریخ په پاڼو کې کښل شوې او یاد یې له هېواد سره زموږ مینه زیاتوي او د هغه خدمت او خپلواک ساتلو ته مو هڅوي.

ستاسو په اند د ملي اتلانو یاد او د هغوی پر ژوندلیک پوهېدل موږ ته څه رازده کوي؟

په دې لوست کې د هېواد د خپلواکۍ د لارې د یو بل اتل، میربچه خان یادونه کوو. د غازی میربچه خان کوهدامني اصلي نوم میر بهاءالدین او د پلار نوم یې میر درویش خان دی. په ۱۲۰٤ لمریز کال (۱۸۲۵ میلادي) کې یې د میربچه کوټ ولسوالۍ د بابه قشقار (ع) په کلي کې نړۍ ته سترگې پرانیستي دي. میربچه خان د غوره اخلاقو خاوند و. له خلکو او ولس سره یې چار چلن ډېر خوږ و. له بېوزلو خلکو سره یې خواخوږي درلوده. د کلي اوسیدونکو هغه ته له ډېرې مینې او مهربانۍ څخه میر بچه خان وایه.

میربچه خان خپلې لومړنۍ زده کړې په خپلې سیمې کې له تکړه استادانو څخه تر لاسه کړې، لیک لوست یې زده و، له غیر رسمي مدرسې څخه یې زیاته گټه پورته کړې وه.



هغه مهال چې د انګلیس پوځونه په شېرپور کې محاصره شول، میربچه خان د خپلو داوطلبو مجاهدینو له لیکو سره یوځای شو. میربچه خان د انګلیسانو تر ټولو سخت دښمن ګڼل کېده. په هر ځای کې به یې د هغوی په وړاندې جګړې ته ځان رساوه او په مېړانې به جنګېده.

میر بچه خان کوهدامني د کابل، میدان وردګو، غزني، کوهدامن، کوهستان او د هېواد له نورو برخو څخه د پوځي افسر محمد کریم خان، غلام حیدر خان کابلي، میر غلام قادر اوپیاني، ملا دین محمد اندړ مشهور پر ملا مشک عالم، ملا عبدالغفور خان لنګري، غلام حیدر خان څرخي او محمد حسن خان لوګري په څېر د هېوادپال ولس له سلګونو مجاهدینو سره لاسونه ورکړل او د یرغلګرو په وړاندې یې پاڅونونه وکړل. د افغان - انګلیس په دویمې جګړې کې پر افغان شاه زلمیانو سربېره په لسګونو مېرمنو د همت ملاګانې وتړلې او د اوبو، ډوډۍ، کارتوسو او نورو پوځي توکو په رسولو یې د خپلو مجاهدو ورونو تر څنګ په جهاد کې کوټلې ونډه واخیسته.

میربچه خان یو پیاوړی شخص و. په ښه تدبیر، لارښوونې او زړورتیا یې وکړای شول د هېواد پیاوړي مجاهدین او د ازادۍ د لارې مبارزین په خپلې شاوخوا راټول کړي، چې له امله یې دښمن له عصري او پرمختللو جګړه ییزو وسایلو سره سره و نه کړای شول د افغان مجاهدینو یرغلونو په وړاندې مقاومت وکړي، نو د زیاتو زیانونو په زغملو زموږ له هېواد څخه سرماتي او غاښ ماتې ووتل.

د افغانستان وياړلی ولس پر خپلو ملي اتلانو او نومیالیو وياړي او د هغوی د اتلولیو پر ډېوې د ژوند خپله لاره روښانوي.

ویاړ د افغانستان پر سرلوړي او دښمن ماتوونکي ولس!




زده کوونکي دې په ډلو کې د افغان - انګلیس په درېواړو جګړو کې د انګلیسانو د ماتې لاملونه وڅېړي او د یرغلګرو په وړاندې دې د افغانانو د بریالیتوب راز څرګند کړي.




۱ - ستاسو په فکر افغان مجاهدینو څنګه وکړای شول د یرغلګرو د نابرابرو پوځونو په وړاندې مقاومت او له خپل هېواد څخه په مېړانې او اتلولۍ دفاع وکړي؟

۲ - د میربچه خان د بریالیتوب راز په څه شي کې پروت و؟ له خلکو سره د هغه چار چلن څنګه و؟

۳ - ستاسو په اند د یرغلګرو په وړاندې مبارزه کې ملي یووالی څه اهمیت لري؟ بیان یې کړئ.





# د آزادۍ په اړه د غازي امان الله خان ویناوې

زموږ د هېواد تاریخ له ملي مشرانو، اتلانو، پوهانو، حکیمانو، لیکوالو او شاعرانو څخه ډک دی. د اعلیحضرت غازي امان الله خان د ژوندلیک او هېواد ته د نه هېرېدونکي خدمت د یاد تازه ساتل زموږ ملي دنده ده. هغه له خپل هېواد سره ډېره مینه درلوده، نه یې غوښتل هېواد یې د پردیو تر جغ لاندې ژوند وکړي. هغه آن له کوچنیوالي څخه په زړه کې دا ارمان درلود، نوځکه یې د واک له ترلاسه کولو وروسته په دې لار کې عملي ګامونه واخیستل. د هغه پر پل باندې پل کېښودل او له هېواد سره د مینې د احساس او جذبې پیاوړې کول د هغه د ارمانونو او هیلو د پوره کولو معنا لري.
موږ ولې د هېواد د ملي مشرانو، اتلانو، پوهانو او لیکوالو یادونه کوو او یاد یې د ځان د ویاړ نښه بولو؟

هغه نوم چې له خپلواکۍ سره نه شلېدونکي اړیکې لري، هغه د اعلیحضرت غازي امان الله خان نوم دی. داسې کوم هېوادپال او آزادۍ خوښوونکی به ونه موندل شي چې د افغانستان خپلواکي یاده شي او د امان الله خان نوم یې خولې ته رانشي. امیر امان الله خان یو نومیالی غازي، د هېواد د خپلواکۍ ګټونکی او هېوادپال واکمن و.
اعلیحضرت شاه امان الله خان غازی، روڼ اندی، د نظر خاوند، متواضع او زړه سواند انسان او د هېواد



پر خپلواکۍ او پرمختګ مین پاچا و. له خلکو او روڼ اندو سره د هغه چار چلند آن تر پاچا کېدو دمخه د خلکو په خولو کې پروت او هغه یې د خلکو زړونو ته نژدې کړی و. د افغانستان پر خلکو د اعلیحضرت امان الله خان تر ټولو کوچنی حق د هېواد د بشپړې سیاسي خپلواکۍ تر لاسه کول دي. که چېرته هغه د انګریزانو پر ضد خلک پاڅون او جهاد ته نه وای رابللي او له انګریزانو سره یې جوړجاړی کړی وای، ښایي د عمر تر پایه به پاچا و؛ خو هغه د خپلو خلکو او هېواد پر سرلوړۍ او خپلواکۍ مین و، د پاچهۍ تاج او تخت یې د هېواد د خپلواکۍ په لارکې کېښودل او د عیدګاه په لوی جومات کې یې د تاج د پرسرولو په لومړۍ اوونۍ کې د بشپړې خپلواکۍ د اخیستلو وینا وکړه، خپله پاچهي یې د هېواد په بشپړې خپلواکۍ پورې اړونده وبلله.

خلکو ته یې په وینا کې وویل: «لومړی د خپل ملت ربښتینو او نجیبو خلکو ته زیری ورکوم، چې ما د افغان سلطنت تاج د افغانستان د کورنۍ او بهرنۍ واکمنۍ په نامه پر سر ایښی دی.» وروسته یې له خپلواکو افغانانو څخه وغوښتل له هغه سره د دې ملي ستر ارمان په ربښتیني کولو کې مرسته او ملاتړ وکړي.

بله پلا اعلیحضرت امان الله خان د عیدګاه په جومات کې، په داسې حال کې چې عسکري جامې یې په تن کې وې، په یوې وینا کې سرتېرو، مامورینو او کابل ښاریانو ته وویل: «زماګرانه ولسه، زه د سرتیري دا جامې تر هغه پورې له خپل تن څخه نه کاږم، ترڅو مې مورنۍ مېنې ته د خپلواکۍ جامې نه وي وراغوستي. زه دا توره تر هغه په تېکي کې نه ننباسم، ترڅو مې د هېواد پر حقونو ګېډه اچوونکي پر خپل ځای کېښنولي نه وي. ای زماګرانه ولسه او ای زما سرښندونکو سرتېرو! د خپل هېواد د ژغورولو لپاره خپل وروستني شته راوړئ، راځئ چې خپل له غیرته ډک سرونه د خپل هېواد د آزادۍ لپاره وښندو!»

کله چې امان الله خان ته څرګنده شوه، انګلیسانو د یو خپلواک هېواد او د نړۍ له نورو خپلواکو هېوادونو سره د برابرو حقونو د هېواد په توګه د افغانستان د رسمیت پېژندلو په اړه دده غوښتنې ته ځواب ونه وایه، نو د کابل په دربار کې یې د ۱۹۱۹ کال د اپرېل په ۱۳ په داسې حال کې چې د انګلستان سفیرهم ناست و، وویل: «ما خپل ځان او خپل هېواد د کور دننه او بهر په بشپړ ډول خپلواک اعلان کړ. له دې وروسته زموږ هېواد د نړۍ د نورو دولتونو او قدرتونو په څېر خپلواک دی او هیڅ ځواک ته د یو وېښته په اندازه حق نه ورکول کیږي چې د افغانستان په کورنیو او بهرنیو چارو کې لاسوهنه وکړي او که څوک دا کار وکړي، ورمېږ به یې پر دې تورې وربېم.» وروسته یې مخ د انګلیس سفیر ته واړاوه او ورته یې وویل: «زما په خبره وپوهېدې!» د انګلیس سفیر په ډېر درناوي ځواب ورکړ: « هو، پوه شوم.»

امان الله خان د کندهار خلکو ته د ملي یووالي په اړه په یوې بلې وینا کې وویل: «هندو، هزاره، شیعه، سني، احمدزي او پوپلزي نه لرو. بلکې ټول یو ملت یو او هغه هم افغان. ما ته ټول افغانان د ورونو په څېر دي.»



په ۱۳۰۸ لمریز کال کې د کندهار او هزاره قومونو لس زره کسیز پوځ د امان الله خان په مشرۍ کابل ته په لار و. په لار کې د غلیم د دسیسو پر بنسټ څو تنه قبایل ووژل شول او جسدونه یې د لارې په اوږدو کې ځوړند شول. امان الله پاچا ددې ناوړه وضعې په لیدو سرتېري ځان ته راوغوښتل او ورته و یې ویل: «اوس څرګنده شوه چې دښمنان غواړي زموږ د قبایلو په منځ کې فساد او جګړه رامنځ ته کړي، ترڅو موږ پخپلو لاسونو یو بل ووژنو. ددې ناخېزه کار لامل به زه اوسم او د تاج او تخت د ترلاسه کولو لپاره به وژنه او وینه تویېدنه رامنځ ته شي. نو ای زما ګرانو ورونو، باور ولرئ چې زه ددې کورنۍ او قبیلوي جګړې زړه ماتوونکې صحنې لیدل نشم زغملای. زه نه غواړم تاسو تاج او تخت ته زما د ستنېدو لپاره دې کار ته لاس واچوئ. باید زه له تاسو څخه لاړ شم، ترڅو ددې وژنو او وینې تویېدلو لامل نشم. تاسې ګران ملت به ژوندی او افغانستان به پاتې وي؛ خو تلپاتې مختوري او ددې ناوړه کار پړه به زما پرغاړه وي. په داسې حال کې، ما د پاچهۍ له لومړۍ ورځې څخه ژمنه کړې وه چې د هېواد د خپلواکۍ د ترلاسه کولو او د ځمکنۍ بشپړتیا ساتنه او تاسو د افغانستان د خلکو د نېکمرغۍ او یووالي ته به کار کوم... اوس وینم چې تاسو په قومي او قبیلوي جګړو کې ښکېلېږئ. دادی اوس میدان پخپله د افغانستان خلکو ته، که مخالف وي یا موافق، پرېږدم. تاسو پخپلو کې جوړ شئ. زه د تاج او تخت د بېرته ترلاسه کولو لپاره د کورنۍ جګړې پړه پر غاړه نشم اخیستلای... زما توصیه تاسو ته داده چې یو تر بله روغه وکړئ، اتفاق وکړئ، خپله خپلواکي وساتئ، هېواد بهرنیو دښمنانو ته مه سپارئ! زه ستاسو له ډلې څخه یو تن یم. که تاسو نېکمرغه وئ، همدا به زما نېکمرغي وي، خو که تاسې په وینو کې لت پت شئ، زما د تلپاتې غم او کړاو لامل به شي.»




زده کوونکي دې د افغانستان د خپلواکۍ د ترلاسه کولو او تاریخ په اړه خپل نظر څرګند کړي.




۱ – اعلیحضرت امان الله خان ولې د افغانانو په زړونو کې ځای لري؟
۲ - د اعلیحضرت امان الله له ویناوو څخه څه مفهوم اخیستل کیږي؟
۳ - ولې اعلیحضرت امان الله خان ونه غوښتل چې د تخت د ترلاسه کولو لپاره جګړه وکړي؟




زده کوونکي دې په کورونو کې د اعلیحضرت امان الله خان د هېوادپالنې په اړه یوه مقاله ولیکي او په بل ساعت کې دې نورو ته وواییې.





# د ملي مشرتابه ځانګړتیاوې

مشري د یوې ټولنې د نظم او ژوند د برابرولو، ټینګولو او لارښوونې یو اصل دی. هره کورنۍ، کلی، ټولنه، قبیله، ولس، سیمه او هېواد هرومرو یوه مشر ته اړتیا لري. له انساني ټولنو ورهاخوا الوتونکي، مېږیان، مچۍ، غالبوزې، ځلوربولي او ځناور هم په طبیعي ډول د غریزوي اړتیاوو او پرمختللي شعور په برکت د خپل مشر او لارښود تر مشرۍ لاندې ژوند کوي. د ژوند چارې او ورځنۍ کارونه تنظیموي، دفاع او تعرض کنترولوي. له خپل استوګنځي، د کورنۍ له غړو، بچیانو او همنوعانو څخه ننګه او ملاتړ کوي. په ډله ییزه توګه ژوند او د نسل بقا او پایښت ته دوام ورکوي.

انساني ژوند په عقل، پوهې، زغم، کار او پلان اداره کېږي. یووالي او پیوستون د ژوند د ښه کېدو او سمېدو اړین توکي دي؛ خو د ټولنې د مشرۍ رول او چارې د لارښود (مشر) پرغاړه وي.

آیا هر څوک منلی رهبر او ملي لارښود کېدای شي؟

هره ټولنه، که کوچنۍ وي یا لویه، کورنۍ وي، کلی وي او که چم - مالت وي، ولسوالي وي که ولایت وي یا یو هېواد، په خپل ځای کې د خپلو کارونو د همغږۍ، ودې او پرمختګ او د ستونزو د هوارۍ لپاره یوه مشر او ناظم ته اړتیا لري. که مشر د مشرۍ پر اصولو برابر وي، نو ټولې ستونزې او ربړې په

خپل مهال هواریږي، هغه جوړښت د سوکالۍ او نېکمرغۍ پړاوونو ته رسیږي او که خدای جل جلاله مه کړه، د مشرۍ ځانګړتیاوې ونه لري، نو هغه جوړښت، ټولګی او ټولنه د خپل ژوند او بقا پر خوند او ارزښت نه پوهیږي او تل به له کړاوونو سره مل وي.

زموږ افغاني ټولنه د ژوند په ټولو ډګرونو کې یو لړ ارزښتمن ځانګړي دودونه او رواجونه لري. دا دودونه موږ ته له نیکونو او پلرونو څخه راپاتې دي. یو شمېر یې د وخت په تېرېدو لا پسې پیاوړي شوي او د ملي او دودیز قانون بڼه یې غوره کړې ده.

مشري کول یا د مشر په توګه ټاکل هم یو تاریخي دود دی. زموږ په ټولنه کې مشر په ځانګړو وختونو کې غوره کیږي. تر ټولو کوچنۍ ډول یې د کورنۍ یا قوم مشري ده. کله که د یوې کورنۍ پلار یا مشر مړ شي، نو د قوم او ولس خلک د هغه ځیناستی ټاکي. معمولاً په لومړي سر کې د مشرۍ لپاره د کورنۍ یا قوم مشر نارینه غړی غوره کیږي، خو کله ناکله داسې هم کیږي چې نوموړی د مشرۍ د ټاکلو لپاره لازمې وړتیاوې او ځانګړیتاوې ونه لري. پر ځای یې د کورنۍ، قوم یا ولس بل غړی تر پام لاندې نیول کیږي.

ددې خبرې معنا دا ده چې هر څوک مشر کېدلای نشي، بلکې هر مشر ښایي د رهبرۍ او مشرۍ غوره او ټاکلې ځانګړنې ولري؛ په دې معنا چې مشر باید مسلمان، پوه، عاقل، تجربه لرونکی، د زغم خاوند، بشردوست، له تبعیض او تعصب څخه لرې، د ملي ګټو ساتونکی، زړه سواند، په کارونو کې د سلا کولو اصل ته ژمن، د سیاسي لید لوري خاوند او له هېواد او خلکو سره د زړه له تله توده او تر بل هر چا زیاته مینه ولري.

د پښتو ستر شاعر او لیکوال، خوشحال خټک هر څوک د مشرۍ وړ نه بولي، وایي:

چې دستـــار تړي هـــزار دي　　　　د دستار سړي په شمار دي

خوشحال خټک د مشرۍ لپاره شل خاصیتونه یا ځانګړتیاوې لازمې بولي؛ لکه د ځان پېژندل، پوهه، سلا مشوره، صداقت او رښتینولي، شرم او حیا، نیک خویي، مروت، عفو او کرم، تمیز، عدل او انصاف، د ملک انتظام، حلم، غیرت، احتیاط او نور.

یو مشر باید په خپل ځان کې صداقت او رښتینولي وروزي او خلک یې هم د صادق او امین شخص په نامه وپېژني. شرم، حیا، مېړانه، ښښنه، زړه سوی، په کارونو او د خلکو تر منځ عدل او انصاف، د خپل چاپېریال او ماحول په اړه سم او رغنده فکر او په کارونو کې احتیاط او پام د مشرانو ځانګړتیاوې دي، چې ښایي تل پرې عمل وکړي.



په هر کار کې د الله جل جلاله رضا، د هغه د مخلوق او خپلو هېوادوالو ته خدمت او ګټه رسول د انسان د سرلوړۍ، بریالیتوب او خوښۍ لامل کیږي. په دې کار به موږ په انساني لیکه کې ځانته ځای موندلی وي او دیني او دنیوي خیر او فلاح به مو تر لاسه کړې وي.



## فعالیت

زده کوونکي دې په مناسبو ډلو ووېشل شي. هره ډله دې د یوه ملي مشر پر ځانګړتیاوو خبرې وکړي. بیا دې د ډلو استازي د خبرو اترو پایلې نور ته څرګندې کړي.



## ارزونه

۱ – یو زعیم او مشر باید کومې ځانګړتیاوې ولري؟

۲ - ولې یو مشر ته بنایي د نورو عادي وګړو په پرتله د پوهې، زغم، عدل او انصاف، مېرانې او بښنې او لوروني خاوند واوسي؟

۳ - د یوه منلي مشر د ټاکلو په اړوند د یوې ټولنې د وګړو مسؤولیتونه کوم دي؟ رڼا پرې واچوئ.



## کورنۍ دنده

د یو منلي او سم مشر د ځانګړتیاوو او د هېواد له پرمختګ سره د هغوی د اړیکو په اړه یوه مقاله ولیکئ.

ویې لولئ او خوند ترې واخلئ:

چې هـــــنر د بزرګۍ درخخه نه وي
که طـــالع او هنــر دواړه سره کښېږدي

طالع څه کا تا په سر واخلي مـــګر
زه خوشحال به یکې ونیسم هنـــر

(خوشحال خټک)







## د ولسونو د لوړتیا او ځوړتیا لاملونه

بشري ملتونه او ولسونه د لوړتیا او ځوړتیا، پاینښت او د نسکوریدو پړاوونه لري. تاریخ د ډیرو ملتونو او تمدنونو د لوړتیا او نسکوریدو شاهد دی.
په دې لوست کې به د ملتونو د لوړتیا او ځوړتیا څو لاملونه په ګوته کړو چې وپوهیږو د هېواد پرمختګ او خپلواکي له عمل څخه پرته مازې په تشو شعارونو او ارمانونو نه ترسره کیږي؛ بلکې ددې لویو موخو ربښتینولي د الهي قوانینو او ددې لاملونو او قوانینو د سمې ګټې اخیستنې له لارې ترلاسه کیږي.
ستاسو په اند کوم لاملونه او شرایط د ملتونو او بشري تمدنونو د لوړتیا او ځوړتیا لامل کیږي؟

### د ملتونو د پیدایښت، لوړتیا او ځوړتیا لاملونه

د نړۍ پیداکوونکي له کوچني څخه نیولې تر لویو او سترو کهکشانونو پورې ټول مخلوقات د یوه ټاکلي قانون له مخې پیدا کړل، د ددغه قانون پر بنسټ خوځیږي او د پیدایښت له نظام څخه د یوه ویښته په اندازه نه کږیږي.
انسان د ځمکې پر مخ د خدای جل جلاله تر ټولو درونډ او عزتمن مخلوق دی چې د خپلې ارادې



له مخې کولای شي د خیر او شر لاره غوره کړي او لوړتیا او ځوړتیا په خپلو لاسونو رامنځ ته کړي.
که چېرته انسان د پرمختګ پر عواملو، چې پیداکوونکي ورته غوره کړي، خپل ژوند سم کړي، د نړۍ او آخرت نېکمرغۍ ته رسیږي؛ خو که چېرته د لوړتیا او سرلوړۍ د وسایلو له اخیستلو څخه مخ واړوي، د نړۍ او آخرت له ځوړتیا او بدمرغیو سره مخامخ کیږي.
قرآن کریم موږ ته د بشري بېلابېلو قومونو او تمدنونو کیسه کوي چې د پیاوړتیا او لوړتیا پړاوونو ته رسېدلي؛ خو د پیدایښت له قانون څخه د سرغړونې او سرکشۍ له امله بیا له ځوړتیا او زوال سره مخامخ شوي دي؛ لکه د عود، ثمود او فرعون قومونه چې له لوړتیا وروسته له ځوړتیا سره مخامخ او له منځه لاړل. قرآن کریم د هغوی په اړه داسې فرمایي: ﴿فَكُلًّا أَخَذْنَا بِذَنْبِهِ فَمِنْهُمْ مَنْ أَرْسَلْنَا عَلَيْهِ حَاصِبًا وَمِنْهُمْ مَنْ أَخَذَتْهُ الصَّيْحَةُ وَمِنْهُمْ مَنْ خَسَفْنَا بِهِ الْأَرْضَ وَمِنْهُمْ مَنْ أَغْرَقْنَا وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيَظْلِمَهُمْ وَلَكِنْ كَانُوا أَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ﴾[العنکبوت: ٤٠] ژباړه: «په پای کې موږ هر یو د هغه په ګناه سره ونیو. بیا له هغو نه موږ کانې اوروونکی باد ولیږه او څوک یوې قوي چاودنې ونیو اوڅوک مو په ځمکه کې ننه ایستل او څوک مو ډوب کړل. الله پر هغوی باندې ظلم کوونکی نه و، خو خپله یې پر خپل ځان ظلم کاوه.»

### د تاریخ شهادت

د تېرو پېړیو او زمانو او نوي عصر په اوږدو کې د بشري ټولنو تاریخ د ملتونو او تمدنونو د لوړتیا او ځوړتیا لوی شاهد دی. له میلاد څخه وروسته او منځنیو پېړیو په اوږدو کې د یونان، روم او فارس، د منځنیو او وروستیو پېړیو په اوږدو کې د اسلامي سترو تمدنونو د لوړتیا او ځوړتیا، په شلمه پېړۍ کې د استعماري او سترو نړیوالو زبرځواکونو لوړتیا او ځوړتیا د لوی خدای جل جلاله د دې سنت سترې او روښانه بېلګې دي.

### د ملتونو د پرمختګ تر ټولو مهم لاملونه

د سیاسي علومو او ټولنپېژندنې پوهان جغرافیایي موقعیت، د نفوسو شمېر او څرنګوالی، طبیعي سرچینې، علمي او صنعتي پیاوړتیا، یوځي پیاوړتیا او سیاسي مشرتوب د دولتونو او ملتونو د پرمختګ مهم توکي بولي.
له شک پرته دا توکي د هر ملت او ولس د پرمختګ او ترقۍ لپاره اړین دي، خو د یوه دولت او ټولنې



د پیاوړتیا او لوړتیا لپاره ددې توکو سمه کارونه، سالم ایمان او عقیدې، احساس او ملي هویت، قانون او قانونمندی، فکري او سیاسي آزادی، د ټولنیز عدالت پلي کولو، یووالي او پیوستون، علمي پلان جوړونې او سم او منلي مشرتابه ته اړتیا لري.
په دې توکو او لاملونو کې سالمه عقیده او منلی مشر د ملتونو او ټولنو د ترقی او پرمختګ بنسټ جوړوي.
د خدای جل جلاله قانون او لاره د ملتونو او ټولنو په لوړتیا او ځوړتیا کې د هېڅ قوم او ولس پلویتوب نه کوي. په دې توګه هر ملت او ټولنه چې پورته توکي او لارې چارې په سمه او ربښتینې توګه وکاروي، په بشپړ باور د تمدن او پرمختګ پوړیو ته ځانونه رسولای شي. که نه، رانسکوریږي او د ځوړتیا لوري ته ځي.




زده کوونکي دې په درېو ډلو ووېشل شي. هر ډله دې په افغانستان کې د دولت د پیاوړتیا پر دوو عنصرو خبرې اترې وکړي او د استازو په واسطه دې نورو زده کوونکو ته بیان کړي.




١ – انسانان په پیدایښت کې له نورو مخلوقاتو سره څه توپیر لري؟
٢ - د عاد، ثمود او فرعون قومونه څنګه هلاک شول؟
٣ - د فارس او روم امپراتوریو ولې او څنګه سقوط وکړ؟
٤ – د انګلیسانو او شورویانو امپراتوریو د شلمې پېړۍ په پیل او پای کې څنګه سقوط وکړ؟
٥ – د دولتونو او ولسونو د پرمختګ او پیاوړتیا لاملونه کوم یو دي؟ کوم لامل تر نورو ډېر اهمیت لري؟




ستاسو په فکر باید موږ افغانان له کومو لارو چارو څخه کار واخلو چې امنیتي، اقتصادي او ټولنیزې ستونزې هوارې کړو؟ په دې اړه یوه مقاله ولیکئ.



# کورنۍ جګړه، د ولسونو تباهي

جګړه د بدمرغۍ نوم دی. په جګړه کې هر راز مرګ، ژوبله، ورانې او ګډوډۍ رامنځ ته کیږي. جګړه داسې اوردی وچ او لانده ټول سوځوي. په جګړه کې کورنۍ تباه، میندې بورې، خویندې ورارې او مېرمنې کونډېږي. کورنۍ جګړه د ولسونو لویه تباهي ده.

په جګړه کې هر ډول ټولنیز خدمتونه په ټپه درېږي او خلک له راز راز ستونزو سره لاس او ګرېوان کیږي. په دې لوست کې د جګړې د غمیزو او بدمرغیو په اړه معلومات تر لاسه او ناوړو اغېزو ته یې یوه لنډه کتنه کوو.

آیا تاسو د کورنۍ جګړې تریخوالی لیدلی دی؟

جنګ او جګړه د وسله وال ټکر په معنا ده. هر چېرته چې جګړه روانه وي، هلته بدمرغي وي. جګړه داسې یوه وژونکې ناروغي ده چې درمل یې له سولې او روغې جوړې پرته ناشونی کار دی.



هره جګړه وژونکې، ورانوونکې او تباه کوونکې ده. په ځانګړې توګه کورنۍ جګړه تر بلې هرې جګړې ډېره بدمرغه او زیان رسوونکې ده. کورنۍ جګړه پر واک د ګېډې اچولو، بې باورۍ، تعصب، جهل او ناپوهۍ او یو پر بل د نه اعتماد له امله رامنځ ته کیږي. په هر هېواد کې چې د کورنۍ جګړې اور بل شي، هلته عادي ژوند په ټپه دریږي. ناامني، لوږه او ناروغي پراخیږي. روغتونونه خپل ټولنیز روغتیايي خدمتونه سرته نشي رسولای، ښوونځي تړل کیږي، حکومت د خپلو ورځنیو چارو په سرته رسولو کې پاتې راځي. خلک له راز راز ستونزو او کړاوونو سره مخامخ کیږي. د زده کړې بهیر پر ټپه دریږي او یا ماته ګوډه بڼه غوره کوي. کرکیله، تولید، سوداګري، روغتیا، طبیعي زېرمې، ودانۍ، سړکونه او هرڅه د ورانۍ، ګډوډۍ او خرابۍ پر لور درومي. انساني ځواک د جګړې د اور په لمبو کې سوځي. کوچنیان له عادي ودې او روزنې څخه وروسته پاتې کېږي. له جګړې څخه د راولاړو شوو غمونو او ستونزو درانه پېټي زیاتره د ځوانانو پر اوږو باریږي. ښځې او نارینه له لوږې، بدني او رواني رنځونو، ناارامیو او راز راز بدمرغیو سره لاس او ګرېوان کېږي. ټولنیز ژوند له خنډونو سره مخامخ کیږي.

سربېره پردې کورني تور زړي عناصر چور او چپاول ته لاس اچوي. د سیمې او نړۍ په کچه ملي دښمنان د هېواد پر ضد ډول ډول توطئې او دسیسې کوي، ملي خپلواکي، اقتصاد او امنیت له ګواښ سره مخامخ کوي. کورنۍ جګړه د سلګونو بدمرغیو، ناخوالو او مصیبتونو مور ګڼل کیږي.

کله ناکله کورنۍ جګړې او وسله والې نښتې معمولاً د یوې کوچنۍ اشتباه له مخې پیلیږي او که ښکېل لوري له غور، زغم او پوهې څخه کار وانخلي، نو د جګړې د اور سپرغۍ الوزي او ټول هېواد نیسي، چې بیا یې کابو کولو ته د چا وس نه رسیږي. له بلې خوا د خاورې او هېواد غلیمانو ته د لاسوهنې لارې چارې برابریږي، په جګړې کې ښکېل ناپوه لوري په خپله ګټه کاروي او د جګړې اور ته پکې وهي.

د کورنۍ جګړې په بهیر کې پر نورو غمونو او کړاوونو سربېره هېوادوال له خپلو کلو او کورونو څخه تېښتې ته اړ ایستل کیږي. ځوک د هېواد دننه او ځوک له هېواده بهر د خپل سر او ځان د ساتنې په موخه کډه کوي. ډېر زیات مادي او معنوي زیانونه رامنځ ته کیږي. د علم، پوهې او هنر ډیوې مړې کیږي، متفکر مغزونه او کارپوه اشخاص جلا وطنه کیږي او هېواد په تش جنګي ډګر اوړي.

سره له دې چې کېدای شي مالي زیانونه د هېوادوالو په مټ، کار او زیار بېرته تر لاسه شي، خو انساني تشه ژر نه ډکیږي. ډېر وخت ته اړتیا ده چې د هغو پوهو او پر هېواد مینو اشخاصو ځای دی بېرته ونیول شي.

زموږ ګران هېواد د تېل شوې او د هغې تر څنګ د کورنۍ ورانوونکې جګړې تریخ خوند څکلی دی.



د هېواد پر بدن د کورنۍ جګړې ټپونه تر اوسه تازه پاتې او پټۍ ایښودلو ته سترګې پر لار دي.
جګړه په حقیقت کې د ستونزو او لانجو د هوارۍ لار نه ده؛ بلکې غمونه، کړاوونه او ډول ډول ناخوالې زېږوي او د خلکو او ولسونو تر منځ واټنونه پراخوي.
که وغواړو چې په امن او سوله کې انساني ژوند وکړو، نو ښایي د یووالي او زغم لمن ټینګه ونیسو.
خپل حق او د بل حق، بریدونه او پولې وپېژنو. پرچا تېری او ګواښ ونه کړو او د ایماني او وجداني مسؤولیت او تاریخي رسالت له مخې د هېواد ټولو مېشتو ولسونو او پرګنو تر منځ د ورورۍ، اتفاق او مینې تخم وکرو، ځانونه، کورنۍ او هېوادوال هوسا کړو. خپل جګړې ځپلی هېواد پر پښو ودروو او د نړۍ له هېوادونو سره یې سیال کړو. د کورنیو شخړو او ناندریو د هوارولو لپاره پر ټغر کېنو، یو له بل سره د ټوپک د شپېلۍ پر ځای په خولې خبرې وکړو او واټنونه د زغم او [څه واخله، څه ورکړه] د اصل پر بنسټ له منځه یوسو، د الله جل جلاله رضا ترلاسه، هېوادوال هوسا او هېواد د سیالانو په کتار کې ودروو.




زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د جګړې د زیانونو او دویمه ډله دې د سولې د ګټو په اړه خبرې وکړي. د خبرو نتیجه دې د استازو په واسطه نورو زده کوونکو ته بیان کړي.




۱ – جګړه ولې بده ده؟ خلک په جګړې کې کوم زیانونه ګوري؟
۲ – د کورنۍ جګړې زیانونه بیان کړئ.
۳ – ولې په جګړې کې ښځې تر نارینه وو زیات کړاوونه ګالي؟
٤ –څنګه کولای شو د جګړو د احتمالي رامنځ ته کېدومخه ونیسو؟




زده کوونکي دې په کورونو کې د جګړو د ترخو پایلو په اړه یوه مقاله ولیکي.

«په جګړه کې نیکونه، لمسیان او پلرونه زامن خاورو ته سپاري»





# علامه سیدجمال الدین افغان

زموږ هېواد افغانستان د ډېرو نامتو مشرانو، پوهانو، لیکوالو او شاعرانو زانګو ده. هغوی ټولو په هره برخه کې د هېواد او هېوادوالو د سوکالۍ او پرمختګ لپاره په زړه پورې ګامونه پورته کړي دي. پر ژوندلیك یې پوهېدل له یوې خوا هغوی ته د درناوۍ کولو لارې چارې برابروي او له بلې خوا موږ ته له هېواد سره د مینې او خدمت احساس او لوړه روحیه راکوي. په دې لړ کې دلته علامه سید جمال الدین افغان درپېژنو، چې نن یې ټوله نړۍ پر نامه وياړي او درناوی یې کوي.

تاسو د سید جمال الدین افغان له کومو کارونو سره بلد یاستئ؟

علامه سید جمال الدین افغان پر ۱۲۵٤ هجري قمري کال د شعبان په میاشت کې (۱۸۳۹ میلادي) د کونړ ولایت په مرکز اسعدآباد کې په یوه سیده روحاني کورنۍ کې زېږېدلی دی. د پلار نوم یې سید صفدر دی. د سید جمال الدین افغان کورنۍ د کونړ په اسعدآباد کې اوسېده. د امیر دوست محمد خان په وخت کې د سید پلار له کورنۍ سره کابل ته راغی او دلته مېشت شو.

**زده کړه**

سید جمال الدین افغان په اووه کلنۍ کې په دودیزو زده کړو پیل وکړ. دې ډېر زیرک او هوښیار و. دومره پراخ ذهن یې درلود چې په لږ وخت کې یې د وخت دودیزې زده کړې سرته ورسولې. تر اتلس کلنۍ یې صرف، نحوه، معانی، بیان، تاریخ ، تفسیر، حدیث، فقه، اصول، عقاید، منطق، ریاضي، هندسه او طب ولوستل. سید جمال الدین افغان د پراخې مطالعې څښتن و.



## د سید سفرونه او فعالیتونه

سید لومړی هند ته لاړ. هلته يې په لنډه موده کې انګلیسي او اردو ژبې زده کړې. وروسته حجاز ته لاړ او یو کال په عربي هېوادونو کې وګرځېد. کله چې سید جمال الدین افغان په دغو سفرونو کې پر زده کړې سربېره د شاوخوا سیمو د سیاسي ، ټولنیز او اقتصادي حالت ژوره مطالعه وکړه، نو دا فکر ورسره پیدا شو چې څنګه کولای شي، خپل هیواد، اسلامي هیوادونه او نوره نړۍ د نورو له استعمار او نفوذ څخه خلاصه کړي. له دې امله يې عملي هلې ځلې پیل کړې.

دغه مهال په افغانستان کې د امیر دوست محمد خان زوی، محمد اعظم خان پاچا و. سید جمال الدین د نوموړي پاچا د دربار نژدې سلاکار او مخور شو. د امیر محمد اعظم خان د پاچهۍ دوره ډېره لنډه وه او بېرته امیر شیر علي خان د دویم ځل لپاره پاچا شو. دغه مهال سید جمال الدین د خپل هیواد پرېښودو ته اړ ایستل شو. سید له هیواد څخه تر وتلو دمخه خپل ټول پلانونه او مترقي پروګرامونه د وخت امیر ته و سپارل او له هیواد څخه ووت.

سید هند ته لاړ، خو انګرېزانو د هند له خاورې څخه وتلو ته اړ ایست. له هغه ځایه ترکیې ته لاړ. په ترکیه کې د هغه هیواد د صدراعظم په غوښتنه د پوهنې او معارف د وزارت د مجلس غړی وټاکل شو. سید له ترکیې څخه مصر ته لاړ او هلته يې نهه کاله د الازهر په اسلامي مدرسه کې د استاد په توګه دنده تر سره کړه . په ۱۸۷۹ میلادي کال کې له هغه ځایه وتلو ته مجبور شو، بیا هند ته لاړ. له هند څخه لندن ، او وروسته فرانسې ته لاړ .

## پوهه او سیاست

سید په یوه ځای کې نه اوسېد. غوښتل يې هرې سیمې ته لاړ شي، له خلکو سره وګوري او د هغوی د ژوند په اړه معلومات پیدا کړي. په دې توګه په ټول هند کې وګرځېد او په هر ځای کې يې له خلکو سره په ټولنو او غونډو کې ولیدل او د خپل سفر پر مهال يې د هغو ځایونو دخلکو دود دستور او احوال ځانته ښه روښانه کړل. سید د نړۍ ډېرو برخو او هېوادو ته سفرونه وکړل او د هرې سیمې او هېواد خلک يې د ژوند د ربښتیني معنا د پوهېدو لپاره راپورته کړل. سید افغان له هند څخه مکې شریفې ته ولاړ، حج يې وکړ او د عربو خوی، کړه وړه او دودونه يې ولیدل. ترحج وروسته بیرته افغانستان ته راغی. دا مهال لوی پوه او نابغه ځنې جوړ شوی و. کله چې بېرته هیواد ته راستون شو، نو د وخت حکومت دده د زیرکتیا او پوهې امله لوړ ځای ورکړ.

سید په خپل هېواد کې د حالاتو د خرابوالي له امله بهر ته د تګ هوډ وکړ. امیر شیر علي خان ته ورغی او د رخصتېدو پر مهال يې د هیواد د پرمختګ لپاره ځینې وړاندیزونه وکړل، لکه د یوې جریدې خپرول، د افغانستان د سیاسي خپلواکۍ د اخیستلو اعلان، د کابینې جوړول، د عسکرو منظمول، د ښوونځیو پرانیستل او د سړکونو جوړول، د پوستې او مخابرې وسایل برابرول او نور. سید جمال



الدین افغان د ختیځې نړۍ ستر عالم، لوی سیاستپوه ، مبارز او انقلابي شخص و. دی نه یوازې یوه او مفکر و؛ بلکې له پوهې او مفکورې سره یې عمل هم ملګری کړی و، ځکه نو د عمل او مبارزې د لارې اتل او مخکښ ګڼل کیږي. همدارنګه افغان سید تبعیض او تفرقه نه منله، هغه ته انسان انسان ښکارېده، تور، سپین او ژړ یې یو وجود ګڼل. هغه ته د نړۍ مخ د یوه کور حیثیت درلود او نړیوال یې د یوې کورنۍ غړي بلل.

**مړینه**

سید جمال الدین افغان په ۱۳۱٤ هجري قمري ( ۱۸۹۷ م) کال د سرطان د ناروغۍ له امله په ترکیه کې وفات او خاورو ته وسپارل شو . په ۱۳۲۳ هجري لمریز کال ( ۱۹٤٤ م) کې یې تابوت د ترکیې د حکومت په موافقه کابل ته راوړل شو او د کابل پوهنتون په بڼ کې په پرتمینو مراسمو خاور ته وسپارل شو.




زده کوونکي دې د علامه سید جمال الدین افغان د مهمو سیاسي پروګرامونو په اړه خبرې اترې وکړي.




۱ - بهر ته له سفرونو څخه د سید جمال الدین افغان موخه څه شی وه؟

۲ –ولې سید جمال الدین افغان، له افغانانو پرته، د ټولو نړیوالو د ویاړ نښه ده؟

۳ – آیا یوازې د مشرانو د نومونو په یادولو هېواد ودانېدای شي؟ که نه، نور څه کول په کار دي چې هېواد مو ودان او وګړي مو سوکاله او سرلوړي شي؟




زده کوونکي دې په کورونو کې د سید جمال الدین افغان د شخصیت په اړه څو کرښې مقاله ولیکي او د همدې مضمون په بل ساعت کې دې نورو زده کوونکو ته واوروي.





## هېواد پالنه او د ملي سوداګرو دنده او مسؤولیت

د یوې ټولنې وګړي بېلابېلې دندې سرته رسوي. د ټولنې ټول غړي پر یوې دندې بوخت نه دي، هرچا له خپلې مینې او علاقې سره سم یوه دنده غوره کړې ده.
په دې لوست کې ګورو چې د نورو دندو تر څنګ د هېواد په پرمختګ او ودې کې د سوداګرو دنده څومره ارزښت لري او د هېوادپالنې د احساس او روحیې په راژوندي کولو کې څومره اغېز درلودلای شي.

تاسو له یوه ملي او هېوادپال سوداګر څخه څه تمه لرئ؟
د ټولنې د ودې او پرمختګ راز په فردي توپیرونو کې نغښتی دی. څوك په یوه دنده او کار کې وړتیا لري، څوك په بله دنده او ډګر کې. د دندو او افرادو همدا توپیرونه دي چې یوه ټولنه د پرمختګ او سوکالۍ پوړیو ته رسوي. له همدې امله د ټولنې هر فرد یوه یا بله دنده لري، چې په خپل وخت او ځای کې د پام وړ ارزښت او قدر لري.
که د ټولنې هر غړی په خپلې دندې او کار کې له صداقت او رښتینولۍ کار واخلي او له دندې څخه یې یوازې د ځان ګټه نه وي او د خلکو ګټه او زیان یې هم په پام کې نیولی وي، نو څرګنده ده چې دا کار یې په عبادت کې شمېرل کېږي او د الله جل جلاله د رضا او خوښۍ لامل کېږي.
ټولې دندې مهمې او په خپل ځای کې له ارزښت څخه ډکې دي، خو کله چې د یوې دندې ګټه او

تاوان د ټولنې د ډېرى وګړو د ګټې يا زيان لامل کيږي، نو څرګنده ده چې د هغې اهميت او ارزښت هم په دغه ټاکلي ځای کې تر نورو زيات دی.
د دغو دندو په ډله کې يوه هم سوداګري ده. سوداګر يا د هېواد دننه او يا هم له هېواده بهر د ټولنې د اړتيا وړ توکي چمتو کوي او خلکو ته يې په ټاکلې بيې وړاندې کوي. البته له دې کار څخه د هغوی موخه تر هر څه دمخه د الله جل جلاله د رضا ترلاسه کول، خلکو ته خدمت او د خپل ژوند جوړول دي.
په هر کار کې ښايي لومړی د الله جل جلاله رضا ولټول شي، ځکه ګټه يې څو برابره او کسب يې حلال او د عبادت په درجه کې شمېرل کيږي. دويمه ډېره لويه موخه بايد خلکو او هېواد ته خدمت کول وي. خلکو ته د خدای د رضا په خاطر خدمت ډېر اجر او ثواب لري. هم يې کې د دنيا ګټه نغښتې او هم د آخرت. دريمه موخه د حلالې او روا روزۍ او ګټې تر لاسه کول دي. که په دې ډول لاسته راغلې ګټه لږه هم وي، خو برکت يې تلپاتې وي.
که زموږ ګران سوداګر په دې اړه لږ سوچ او فکر وکړي او په خپل کار او کسب کې پورتنۍ درې موخې په پام کې ونيسي، نو هرومرو د دنيا او آخرت نېکمرغي او سعادت ترلاسه کوي.
زموږ درانه سوداګر له بهر څخه د مالونو او توکو په واردولو کې بايد د خپل هېواد او هېوادوالو ګټې او تاوان په پام کې ونيسي. داسې توکي او اجناس وارد نه کړي، چې د خپل هېواد ملي اقتصاد، صنايعو او د خپلو هېوادوالو روغتيا او هوساينې ته زيان ورسوي. د هر توکي په راوړلو کې ورسره د هېوادپالنې احساس او روحيه موجوده وي.
نن سبا يو شمېر داسې سوداګر شته چې هېواد ته په واردوونکو توکو کې پورته اصلونو ته پام نه کوي او زياتره پرې سترګې پټوي. يوازې د خپلې ګټې او پانګې د ډېرولو په فکر کې وي او بس.
ملي سوداګر بايد هغه توکي هېواد ته رانه وړي چې د هېواد دننه توليديږي. که د دې توکو د واردولو مخه ونيول شي، زموږ د هېواد توليدات او صنايع وده کوي او په پای کې هېواد په همدغو برخو کې په خپلو پښو دريږي او له اړتيا خلاصيږي. ځينې سوداګر د خپلې شخصي ګټې په موخه د اړتيا وړ ځينې توکي، په تېره بيا خوارکي توکي، ساتي او احتکاروي يې، چې په راتلونکي کې يې په لوړه بيه وپلوري. احتکار يو ناوړه عمل او په اسلام کې ناروا بلل کيږي. په هر حالت کې بايد له احتکار څخه په کلکه ډډه وشي.
سربېره پر دې يو شمېر سوداګر ناسم خوراکي توکي، د ماشومانو د لوبو سامان او بې کيفيته درمل واردوي چې د پيسو او پانګې د بې ځايه لګېدو ترڅنګ د ماشومانو روغتيا ته زيان رسوي او پر رنګارنګ ناروغيو يې اخته کوي. کېدای شي د هغوی خپل ماشومان يا د نژدې خپلوانو ماشومان هم پر دې ډول ناروغيو اخته شي.



له دې امله د ملي سوداګرو دنده ده داسې توکي هېواد ته راوړي چې د کور دننه موجود نه وي، د هېوادوالو روغتيا ته مو زيان ونه رسوي او ملي اقتصاد مو پياوړی شي.

ګرانو زده کوونکو ته هم په کار دي چې بازارونو او هټيو ته د تګ پرمهال خپلې روغتيا ته تر بل هر څه ډېر پام وکړي، پر داسې توکو پيسې ورنه کړي چې ځانته په خپله پر پيسو ناروغي واخلي او د مرګ له ګواښ سره يې مخامخ کړي.

دا ډېره مهمه او ارزښتناکه خبره ده چې زموږ جګړه ځپلی هېواد د ژوند په هره برخه کې ځانګړي پام او زړه سوي ته اړتيا لري. موږ هر يو ملي، انساني او اسلامي دنده لرو چې په خپلو ټولو ورځنيو کارونو کې يوازې د الله جل جلاله رضا، خلکو ته خدمت او ځانته د حلالې، روا او پاکې روزۍ د ګټلو نيت او اراده ولرو.




زده کوونکی دې د هېواد په پرمختګ او پراختيا کې د ملي سوداګرو د مسؤوليتونو په اړه خبرې وکړي.




١ - وخت ته په پام له ګاونډيو او نورو هېوادونو څخه د راوړل شوو خوراکي توکو په اړه خپل نظر څرګند کړئ.

٢ – يو تن زده کوونکی دې د سوداګر او بل د يوه هېوادوال په توګه د ملي ګټو، ملي اقتصاد او د خلکو د روغتيا او سلامتی په اړه مرکه وکړي.

٣ – که چېرته ملي سوداګر د توکو په واردولو کې ملي ګټو ته پام ونه کړي، څه پېښېږي؟




زده کوونکي دې په کورونو کې يوه مقاله وليکي. په دې مقاله کې دې له ملي سوداګرو، دولت او هېوادوالو څخه خپلې غوښتنې مطرح کړي.



# د لانجو او ربړو په هوارۍ کې د جرګو رول

زموږ ګران هېواد، افغانستان یو لرغونی هېواد دی. بډای تاریخ، ملي دودونه او تلپاتې ارزښتونه لري. له دغو ارزښتونو او ملي دودونو څخه یو دود او ارزښت جرګه ده. افغانان خپلې شخړې د جرګې له لارې هواروي. همدارنګه د مهمو، تاریخي ملي موضوعګانو او د هېواد د برخلیک د ټاکلو په اړه په لویو جرګو کې سره راغونډېږي او ګډې پرېکړې کوي. هغه پرېکړه چې په یوې موضوع یا شخړې کې د جرګې له خوا نیول کیږي، د ټولو خلکو لپاره د منلو وړ وي او هیڅوک ترې د سرغړولو حق نه لري.

ستاسو کومه لویه جرګه او د هغې پرېکړه په یاد ده؟

جرګه زموږ ملي ارزښت دی او تاریخ یې د لرغونو آریایانو تر دورو پورې رسیږي. د همدغه لرغونتوب، ارزښت او اغېزمنتوب له امله زموږ د ګران هېواد په کچه د ټولو کورنیو، قومي او ملي ستونزو د هوارۍ او پرېکړو نیولو تر ټولو لوړه مرجع ګڼل کیږي. له نېکه مرغه دغه اصل د اسلام په سپېڅلي دین کې هم ارزښتمن بلل شوی دی. خدای جل جلاله په خپل آسماني کتاب، قرآن کریم کې مسلمانانو ته سپارښتنه کړې ﴿وَأَمْرُهُمْ شُورَى بَيْنَهُمْ﴾[الشورى: ۳۸]یعنی: «خپلې چارې په خپلو منځونو کې د شورا له لارې سرته رسوي.» ﴿وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ﴾[آل عمران: ۱۵۹] ژباړه: «له مسلمانانو سره

په کارونو کې مشوره وکړئ.»

د نړۍ ټولو خلکو او ولسونو ته څرګنده شوې چې ستونزې او ربړې د ناندریو او جګړو له لارې نه هوارېږي. ستونزې د پوهې، خبرو اترو او منطق له لارې هوارېدای شي. زیاترو هېوادونو، که د کورنیو او نړیوالو ستونزو د هوارۍ لپاره وسلې ته لاس اچولی، خو له زیاتې مرګ ژوبلې، مادي او معنوي زیانونو له زغمولو وروسته اړ شوي، چې سوله وکړي او لانجې پر خبرو [څه واخله او څه ورکړه] پر اصل هوارې کړي.

جرګه د یوه ولس د سپین ږیرو، لویانو او د باور وړ اشخاصو یوې پراخې غونډې ته ویل کیږي، چې د کورنیو، قومونو، سیمه ییزو، ملي او نړیوالو ستونزو د هوارۍ لپاره راغونډیږي او مهمې پرېکړې کوي. جرګې د خپلو پرېکړو د پلي کیدو واک لري. د افغانستان په معاصر تاریخ کې لویو جرګو د هېواد په کچه سترې پرېکړې کړي چې له امله یې افغان ولس د پرمختګ په لوري ګامونه پورته کړي دي.

ملي او تاریخي لویې جرګې د افغانانو د ملي یووالي او پیوستون د لوړې روحیې او د سولې او هېواد پالنې د عالي احساس ښکارندوی دي. لکه څنګه چې د نړۍ نور هېوادونه په ملي او نړیواله کچه د اړوندو ربړو، لانجو اوشخړو د هوارۍ لپاره له خبرو او تفاهم کار اخلي، دغه راز افغانانو هم د ملي یووالي د لوړې روحیې او د سولې او هېوادپالنې د خپل عالي احساس پربنسټ د خپل هېواد د پنځه زره کلن تاریخ په اوږدو کې د هېواد په کچه د سترو ملي مسایلو، په تیره بیا زموږ د لویو او مهمو سیاسي او اقتصادي ستونزو، ناندریو، تاوتریخوالي او خنډونو د له منځه وړلو، د بهرنیو یرغلونو، کورنیو شخړو او جګړو، قانون جوړولو او نورو نړیوالو او ملي پېښو په باب لویې جرګې جوړې او غوڅې او پرځای پریکړې یې کړې دي. خلکو او ولسونو هغه لکه د کاڼي کرښې بللي او د پښتو ددغه مشهور متل: [کار چې په سلاوي، بې بلا وي] ، پربنسټ یې ورباندې عمل کړی دی.

زموږ په افغاني ټولنه کې د افغاني لویو جرګو د دغه ډول تاریخي اوملي اهمیت په پام کې نیولو سره لویې جرګې د شلمې میلادي پیړۍ په پیل کې په افغانستان کې رسمي بڼه پیدا کړه او د افغانستان د ټولو پرګنو د ارادې د یوه ښکارندوي ارګان په توګه وپیژندل شوه، آن تردې چې د ۱۳۴۳ لمریز کال په اساسي قانون کې یو ځانګړی څپر کې ورکړای شو.

د لویو جرګو جوړېدل د افغانستان د ملي هویت ښکارندویي کوي. د افغانستان د بېلا بېلو پاچاهانو، امیرانو او واکمنانو په دورو کې لویو جرګو د اړوندو ملي مسئلو په هوارولو کې غوښ او ټاکونکی رول



لوبولی او یو ډول نه، یو ډول یې زیات ارزښتونه ځلیدلي دي.

لويې جرګې د افغانانو د ملي تفاهم يوه ډېره مهمه او اغېزناکه لاره ده. زموږ پر ولس او ټولنې کې يې ډېرې ژورې ريښې ځغلولي دي. همدې لويو جرګو د پېړيو په اوږدو کې ډېرو سترو او کړکېچنو موضوعګانو او ربړو ته د پای ټکی ایښی او هېواد یې له سترو ناتارونو څخه ژغورلی دی. پرځای ده چې د دغو جرګو درناوی وکړو او پرېکړې یې د سر په سترګو ومنو.




هغه شمېر زده کوونکي، چې په خپلو کلو او بانډو کې يې د شخړو او لانجو د هوارۍ په اړه کومه جرګه ليدلي يا د هغې په اړوند يې څه اورېدلي وي، په اړه دې يې خبرې وکړي او خپل معلومات دې له نورو زده کوونکو سره شريک کړي.




١ – ستاسو په فکر ولې غوره ده چې ستونزې د جګړې پرځای پر خبرو اترو او جرګو هوارې شي؟

٢ – په جرګه کې که چېرته د شخړې کوم لوری د جرګې پرېکړه ونه مني، څه ورپېښيږي؟

٣ – په هېواد کې د وروستۍ لويې جرګې يادونه وکړئ او اغېز يې د رواني ستونزې په هوارۍ کې بيان کړئ.




زده کوونکي دې د لويې جرګې په اړه په کورونو کې يوه مقاله وليکي او د جرګو په اړه دې خپل شخصي نظر پکې څرګند کړي.





## د هېوادوالو د ځان، مال او ناموس ساتنه

## (ديني وجيبه)

مال د ژوند د پایښت او د اړتیاوو د پوره کولو، د انسانانو ترمنځ د ګټو د تبادلې، د ولسونو د غوړېدا او پرمختګ او د ژوند له بېلابېلو ډګرونو څخه د ګټې وسیله او لار ده. له هغې سره سره د اسلام له نظره مال د ژوند اصلي موخه نه ده، بلکې د خدای جل جلاله د عبادت، د بېوزلو د لاسنیوي، د انسانانو د عزت او ناموس د ساتلو وسیله او د ولسونو د ژوند غوره لار ده.

په دې لوست کې په اسلامي شریعت کې د مال او شتو د درېځ او د ټولنې د وګړو د شتمنیو د ساتنې اړتیا مطالعه کوو.

### د خلکو د مال ساتنه

د اسلامي شریعت د پنځه ګونو مقصدونو په لړ کې یو هم د خلکو شتمني ده چې ټول وګړي، ټولنه او دولت یې په ساتنه او د نه لاسوهنې شرعي دنده پر غاړه لري.

د اسلامي شریعت له مخې، مال په خدای جل جلاله پورې اړه لري چې وګړو ته د سمې او پرځای ګټې اخیستنې لپاره په امانت ډول ورکړ شوی دی. له مال څخه ناسمه ګټه اخیستنه او د هغې زیانول



اجازه نه لري.

اسلامي شریعت د مال د لاسته راوړلو او لګولو په اړه رغنده هراړخیزې لارښوونې کړې دي. انسانانو ته ښايي چې له هغې سره سم خپل مالونه ولګوي او د ټولنې د ټولو وګړو د سوکالۍ او نېکمرغۍ وسیله شي. د ناروا، احتکار او د نورو د حقونو د تریښنو لاندې کولو له لارې د مال او شتو تر لاسه کول د اسلام په سپېڅلي دین کې منع شوي دي.

د مال او منصب درلودل او له هغې څخه ګټه اخیستل د انسانانو فطري غریزه ده. انسان له دې فطرت سره پیدا شوی. د هغه نه خوښېږي چې څوک دې د هغه پر شتو ګېډه واچوي او د هغه دا حق دې ترې واخلي. اسلامي شریعت غلا، د نورو خلکو پرمال او شتو ګېډه اچول او د ځان په ګټه د هغې کارول حرام کړي او سرته رسوونکو ته یې دنیوي او اخروي سزا ټاکلې ده.

## د خلکو د ناموس ساتنه

ناموس یا د انسان آبرو د انسان په نفس پورې تړلې ده. انسان د ناموس او آبرو د ساتنې له لارې له ښاروبو سره توپیر کوي او د دې صفت په ساتلو د خپل همنوعو د مینې او محبت لامل کیږي. که چېرته دا صفت و نه لري، خلک ترې کرکه او نفرت کوي.

اسلام د ناموس پر ساتلو ټینګار کړی او د هغې ساتنه یې د شریعت د پنځه ګونو مقصدونو [د دین، ځان، عقل، مال او نسل یا ناموس ساتل] په لیکه کې ځای کړی دی. د هغه د ساتلو او حفاظت لپاره یې لارښوونې او هراړخیز قوانین او مقررات چمتو کړې دي چې د انسان نسل په سمه شرعي توګه دوام ومومي. د اسلام ستر پیغمبر فرمایلي دي: «مَنْ قُتِلَ دُونَ مَالِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ، وَمَنْ قُتِلَ دُونَ أَهْلِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ، وَمَنْ قُتِلَ دُونَ دَمِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ»، یعنې «څوک چې د خپل مال د دفاع په لاره کې ووژل شو، شهید دی. هغه څوک چې د خپلې کورنۍ (ناموس) په ساتلو کې ووژل شو، شهید دی او هغه څوک چې د خپل ځان په دفاع کې ووژل شو، شهید دی.»

د ناموس د ساتلو او د بشري نسل دوام لپاره اسلامي شریعت کورنی نظام رامنځ ته کړی چې له هر راز لاسوهنې څخه پاک دی او هغه عوامل یې منع کړي چې کورنیو سپېڅلو اړیکو ته زیان ورسوي او یا د نسل د ګډېدو لامل شي.

اسلام کورنۍ د ټولنې بنسټیز اصل ګڼلې او د ټولنې د ټینګېدو او سمون لپاره د کورنۍ ټینګښت او



سمون بنسټیز اصل بولي. له همدې امله اسلامي فقه په ټولو فقهي نظامونو کې کورنۍ تر شخصي احوالو لاندې له عبادت وروسته د شریعت تر ټولو مهم باب ګڼلی او اوږد بحث یې پرې کړی دی.

په دې توګه د هېوادوالو د ځان، مال او ناموس ساتنه یوه دیني دنده ده چې د ټولنې ټول وګړي او دولت د هغې د ساتلو او حفاظت شرعي مکلفیت لري.

هماغسې چې د یوې ټولنې وګړي د ژوند د پایښت لپاره خوړو، اوبو او هوا ته اړتیا لري، په هماغه کچه د دین، ځان، عقل، مال او ناموس د ساتلو دندنه او مکلفیت لري. آن په ځینو وختونو کې د انسان د ځان، ناموس او مال ساتنه له خوړو او اوبو څخه ړومبنۍ دنده ګڼل کیږي.

په دې توګه په لومړي ګام کې د هر وګړي، په تېره بیا د دولت شرعي او دیني دنده ده چې په بشپړ ډول د هېوادوالو د مال، ځان او ناموس د ساتلو او حفاظت لپاره جدي ګامونه پورته کړي.




زده کوونکي دې په ډلو کې ددې موضوع په اړه چې په بشري ټولنو کې د مال او شتو دریځ څنګه دی، خبرې وکړي او د خبرو پایله دې استازي نورو ته ووایي.




١ - اسلامي شریعت د مال او شتو د لاسته راوړلو او لګولو په اړه کومې لارښوونې کړې دي؟

٢ – د عامه شتمنیو او د خلکو د مال او ناموس ساتل د چا مسؤولیت او دنده ده؟

٣ – په اسلامي شریعت کې د ځان، مال او ناموس ساتنه څه حکم لري؟

٤ – د خلکو د مال، حیثیت او آبرو ساتنه د چا دنده ده؟




د وګړو د مال، ځان او ناموس ساتنه د چا دنده ده؟ زده کوونکي دې په دې اړه یوه لنډه مقاله ولیکي او په بله ورځ دې ټولګي ته راوړي.





## پوهاند دکتور عبدالحکیم طبیبي

زموږ هېواد د نامتو اشخاصو او پوهانو ټاټوبی دی. هغوی په خپلو نه ستړي کېدونکو خدمتونو دا هېواد تر اوسني کچې رارسولی دی. د هغوی نومونه او کارنامې موږ ته په ژوند کې د بریالیتوب لارې چارې راپه‌گوته کوي. د ځوان نسل په توګه تاسو ته ښايي د هغوی پر پل، پل کېږدئ او له تجربو یې د ژوند د ودې او پرمختګ لپاره کار واخلئ.

د نورو مشهورو پوهانو، لیکوالو، سیاستپوهانو او ملي مشرانو په لړ کې دلته دکتورعبدالحیکم طبیبي درپېژنو.

تاسو د هېواد د یوه ملي مشر، پوه، لیکوال او شاعر درناوی څنګه کوئ؟

دکتورعبدالحکیم طبیبي د ۱۳۰۴ لمریز کال د تلې په میاشت کی د افغانستان په پلازمینې، کابل کې زېږېدلی دی. خپلې زده کړې یې لومړی د کابل په حبیبیې لیسه کی پای ته ورسولې. وروسته یې خپلې لوړې زده کړې د کابل پوهنتون د حقوقو او سیاسی علومو په پوهنځی کې پیل کړې. بیا یې په ۱۹۵۲ میلادي کال کې د امریکا د جورج واشنګټن له پوهنتون څخه د فوق لیسانس درجه تر لاسه کړه. په ۱۹۵٤ میلادي کال کې یې په امریکن یونیورسیټی کې د ډاکټرۍ درجه لاسته راوړه.

په ۱۳۳٤ لمریز کال کی یې د افغانستان د باندنیو چارو د وزارت په دریمه څانګه کې د سیاسی خدماتو د رئیس په توګه په کار پیل وکړ. په ۱۳۳۵ لمریز کال کې د ملګرو ملتونو په سازمان کې د



افغانستان د ځانګړي او دايمي استازي په توګه وټاکل شو .په ۱۳٤٤ لمريز کال کې د عدلیې د وزارت دنده ورېه غاړه شوه. په ۱۳۵۲ کال کی په پخوانۍ یوګوسلاویا کې د افغانستان د سفیر په توګه و ټاکل شو. وروسته په جاپان، هند، فلیپین او بلغاریې کې د افغانستان سفیر او استازی و.

پر افغانستان د شوروي اتحاد د یرغل پر مهال له خپلې دندې څخه ګوښه او جلا وطنه شو. د پردیو له منګولو څخه د هېواد د آزادولو په لاره کې یې نه سترې کېدونکې هلې ځلې وکړې.

ښاغلي دکتور طبيبي د خپل ژوند ۳۵ کاله په نړیوالو حقوقي ټولنو کې تېر کړل. د خپلو دغو تجربو په رڼا کې یې د حقوقو په اړه مهمې لیکنې وکړې؛ لکه: «د سمندرونو حقوق»، «د ترانزیت حقوق». دا موضوعګانې په انګلیسي ژبه د سویسزرلینډ په مجلو او خپرونو کی خپرې شوي او وروسته په پراګ او هند کې د کتاب په ډول چاپ او خپرې شوي دي.

د ښاغلی طبيبي نور تألیفات په لاندي ډول دي:

۱ – د ملګرو ملتونو د سازمان سیاستونه

۲ – دموکراسي، (د عدلیې وزارت په خپرونه کې)

۳ - د ترانزیت حقوق (د وخت د مطبوعاتو وزارت له خوا چاپ شوی)

٤- د سمندرونو حقوق (د وخت د مطبوعاتو وزارت له خوا چاپ شوی)

۵ – سید جمال الدین افغان د تصوف سید، (د وخت د مطبوعاتو وزارت له خوا چاپ شوی)

٦ - د افغانستان تاریخ

۷ - د هرات تاریخ (په افغانستان، ایران، پاکستان او امریکا کې چاپ شوی)

۸ - پریشانه خاطرات

۹ - د وچو هیوادونو ترانزیتی حقوق

دوکتور طبيبي د ۱۳٤۳ کال د اساسي قانون د لویې جرګې غړیتوب او د هغې په تدوین کې برخه درلوده.

نوموړي د افتخار ډېر مډالونه تر لاسه کړي. د افغانستان او نورو باندنیو هېوادونو په مطبوعاتو کې یې ډېرې ادبي، سیاسي او تاریخي مقالې لیکلې دي. یوه موده یې په سویسزرلنډ کې د سید جمال الدین افغان په یاد په انګلیسي او عربي ژبو د (عروة الوثقی) د مجلې د خپرولو ویاړ درلود.

نوموړی له اوږدې ناروغی څخه وروسته په ۱۳۸۷ کال کې د سویس په هېواد کې مړ او هلته خاورو ته وسپارل شو.






دهېواد د پرمختګ او ودې لپاره له خپلو هېوادوالو څخه څه غواړئ؟ په دې اړه خبرې اترې وکړئ.




۱ - ولې د ملي مشرانو نومونه یاد ساتو او درناوی یې کوو؟
۲ – ستاسو په اند له هېواد سره د مینې درلودل څه معنا او مفهوم لري؟
۳ - د هېواد په پرمختګ کې د زده کوونکو دنده څه ده؟

## کورنۍ دنده

د ملي مشرانو، پوهانو، سیاستوالو، لیکوالو او شاعرانو یاد خپله هغوی او موږ ته څه ګټه لري؟ په دې اړه ځو کرښې مقاله ولیکئ.

دا شعر ولولئ:

### د افغان ترانه

تل دې سـرونـه زمـوږ او چت وي | تل دې ساتلـی پت او عـزت وي
هر وخت دې دلته شان و شوکت وي | ننګ و غیرت دې زموږ دولت وي
د وطـن عشق دې وي زموږ زړو کې | ځـای دې دده وي د قام لیمو کې

تل دې افغـان وي تل دې افغان وي
بیرغ زمـوږ دې لـوړ په جهـان وي

افغـانستـانـه تـل دې ودان یې | لـه غلیمـانو دې په امـان یې
تـه دې سر لـوړی تل په جهان یې | زمـوږ ځـان یې په موږ ګران یې
هر څـه بـه ځـار کړو ستا له هوا نه | ستـا لـه عـزتـه لـه اعتلانه

تل دې افغـان وي تل دې افغان وي
بیرغ زمـوږ دې لـوړ په جهـان وي

په حـق مین یـو د حق په خوا یو | دښمـن د ظلـم د نـاروا یو
آزادي ساتـو آزادي ستـایـو | سـر پـه وطن ږدو په ننګ فدا یو
نـه ظالمـان یـو نه مظلومـان یو | ښاغلـی نسل مـوږ د افغان یو

تل دې افغـان وي تل دې افغان وي
بیرغ زمـوږ دې لـوړ په جهـان وي





## ملي يووالی، يوه څرګنده اړتيا

يووالی د ګډ ټولنيز ژوند يو اصل دی. ټولنيز ژوند له يووالي پرته ناشونی دی، ځکه ټولنه د افرادو له يووالي څخه رامنځ ته کيږي او خپل ټولنيز ژوند پرمخ وړي. په ځانځانی او بې اتفاقی هيڅ کار نه ترسره کيږي. د برياليتوب راز په يووالي کې نغښتی دی. همدا لامل دی چې انسانانو په طبيعي ډول د خپل ژوند د ستونزو د هوارۍ لپاره ټولنې رامنځ ته کړي او يو د بل په مرسته ژوند پر مخ وړي.
ستاسو په اند د ملي يووالي په رامنځ ته کېدو کې «څه واخله او څه ورکړه» څه مفهوم لري؟

نړۍ له بېلا بېلو هېوادونو او هرهېواد له مختلفو قومونو او ولسونو څخه ترکيب او جوړ شوی. د هر هېواد، ولس او خلك د يوه عالي هدف لپاره په خپلو کې يو موټی شوي او يو دولت يې تشکيل کړی دی. هغوی د خپل ځان د هوساينې او سوکالی په موخه په ګډه خپل هېواد ته کار کوي، خپلواک يې ساتي، ټولنيز، اقتصادي او سياسي بنسټونه يې ټينګوي او د نېکمرغۍ او پرمختګ لوړو پوړيو ته يې رسوي. همدا راز هغوی خپل هېواد د پرديو له منګولو او تاړاکونو څخه په ګډه ساتي او دفاع يې کوي.
هو، همدغه لاري چارې د يوه هېواد د پرمختګ او ترقۍ اصلي او بنسټيز لاملونه دي، خو دا چارې په يوازې سر نه تر سره کيږي او نه يې يو شخص او يو وګړی د سرته رسولو وس لري. دا د ټولو ولسونو او پرګنو کار دی. هغوی په يوه واحد محور راټوليږي او هر يو له خپل وس، پوهې او ټولنيز دريځ څخه



په ګټې اخیستنې د نومورو موخو د لاسته راوړلو لپاره هاند او هڅه کوي. په دې توګه د یوه ځانګړې او مشخص هدف لپاره د ولسونو او پرګنو راټولېدو ته یووالی وایي.

یووالی یو دیني او اسلامي ارزښت دی. الله جل جلاله فرمایلي دي: ﴿وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا﴾[آل عمران: ۱۰۳] ژباړه: «ټول یوځای شئ، د الله جل جلاله رسۍ ټینګه ونیسئ او تیت پرک کیږئ مه.»

په یووالي کې برکت دی. یووالی د پرمختګ او نېکمرغۍ ضامن دی. پر یووالي انسان خپلو ټولو لوړو انساني پوړیو ته رسیږي.

یووالی د قوت او پیاوړتیا نوم دی. د یووالي او پخې ارادې په برکت غرونه ویلي کیږي. زموږ ګران هېواد، افغانستان د افغاني ولس د یووالي او یو موټي کیدو په برکت منځته راغلی، د یووالي او اتفاق په مټ تر دې ځایه رارسېدلی او د نړۍ زبرځواکونه یې په ګونډو کړي دي. دا د افغانانو د یووالي او اتفاق برکت دی.

افغاني خاوره د ټولو افغانانو ګډ کور دی، د ساتنې لپاره یې ټولو افغانانو یو بل ته د اتفاق او ورورۍ لاسونه ورکړي دي. هر افغان بل افغان خپل ورور ګڼي. هغه څه، چې د ځان لپاره یې خوښوي، د خپل ورور لپاره یې هم خوښوي.

وګورئ، افغانانو په خپل نه ماتېدونکي یووالي او قوت په تېر نژدې تاریخ کې د نړۍ ستر زبرځواک [پخواني شوروي اتحاد] ته داسې ماتې ورکړه چې د نړۍ هېوادونه ورته ګوته په غاښ شول. تېرو څه ناڅه درې نیمو لسیزو تپل شوو جګړو پر افغان ولس هغه کاڼې وکړې چې تاریخ ته به یې مخینه ډېره لږه یاده وي. اخ و ډب رامنځ ته شو. پلرونه د زامنو او میندې د اولادونو په ویر ویرجن شول. پوهنې ته لږ پام واړول شو. دې حالت یو څه موده دوام وکړ، خو د تېرونو رغېدل یې وخت ته اړتیا لري.

ترهغه چې یو افغان بل افغان ته د ورورۍ لاسونه ور نه کړي، ترهغه چې افغانان د علم او پوهې له خواږه نعمت څخه برخمن نشي، ترهغه چې د ټولو افغانانو ترمنځ د متقابل درناوي روحیه رامنځ ته نشي، ترهغه چې یو بل ونه زغمي، تر هغه چې د ملي ګټو لپاره له شخصي ګټو تېر نشي، تر هغه چې له خپلې پاکې خاورې څخه په شریکه ساتنه او دفاع ونه کړي، نو د پرمختګ لوړو پوړیو ته به مو رسېدل ګران وي.

افغانان یو بدن او یو موټی ولس دی. د خپل رپانده ملي بیرغ او د اساسي قانون تر سیورې لاندې د خپل ګډ کور د جوړېدو او بیاودانولو لپاره ژور فکر او هلې ځلې کوي. له دې وروسته نه ښایي زموږ ګران هېواد د جګړې پر اور وسوځي او خپل راتلونکي نسل ته د جګړې او ورانۍ ناوړه میراث پرېږدو؛



باید پر ځای یې مینه، محبت، یووالی، ورورګلوي، نېکمرغي، سوکالي، ودان او پرمختللی افغانستان پرېږدو.




زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي. د یووالي او وحدت د اهمیت او د بې اتفاقۍ پر زیانونو دې وغږېږي او د استازو په واسطه دې یې نورو زده کوونکو ته بیان کړي.




۱ – د بې اتفاقۍ زیانونه ووایئ.

۲ - په هېواد کې د یووالي او پیوستون د ټینګېدو لپاره کوم شیان تر نورو مهم دي؟




زده کوونکي دې د یووالي د اړتیا په اړه یوه مقاله ولیکي او له نورو زده کوونکو سره دې شریکه کړي.

«د قومونو او ولسونو د سعادت او پرمختګ راز په یووالي کې نغښتی دی.»

«که ما ویل چې زه یم او تا ویل چې زه یم، نه به ته یې نه به زه یم

او که ما ویل چې ته یې او تا ویل چې ته یې، هم به ته یې هم به زه یم»





# استاد صلاح الدین سلجوقي

علامه صلاح الدین سلجوقي د افغانستان او اسلامي نړۍ د نومیالیو پوهانو او لیکوالو په ډله کې شمېرل کیږي. د نوموړي آثارو او لیکنو د افغان ولس په ویښتیا او بیدارۍ کې ستر رول لوبولی دی. هغه په دین، اخلاقو، سیاست، ادبیاتو او هنر کې له اغېز ډک کتابونه او رسالې لیکلي او په دې اړه یې خپلو هېوادوالو ته نه هیرېدونکي خدمتونه سرته رسولي دي. د افغانستان ځوان نسل د نورو لیکوالو او پوهانو په څېر د ارواښاد سلجوقي په اړه پوره معلومات نه لري او د هغه له خدمتونو څخه یې ګټه نه ده اخیستې.

په دې لوست کې ددې ستر نومیالي د ژوند له تیرو برخو سره بلدیږو او په لنډ ډول یې پر ژوندلیک باندې ځانونه پوهوو.

**لنډ ژوند لیک**

صلاح الدین سلجوقي د مفتي سراج الدین زوی په ۱۲۷٦ لمریز کال کې یې د هرات په یوې علمي کورنۍ کې نړۍ ته سترګې پرانیستي دي. سلجوقي د خپلې کورنۍ په اړه داسې وایي: «زه د هرات په یوې علمي او دیني کورنۍ کې زیږېدلی یم.»

صلاح الدین سلجوقي د کوچنیوالي او زلمیتوب دوره له خپل پلار او نورو مشهورو عالمانو او



مدرسینو څخه د علم په زده کړه کې تېره کړې. استاد سلجوقي تر شل کلنۍ پورې بېلابېل علوم او فنون ولوستل. هغه د زیات استعداد او وړتیا خاوند و. په فارسي ادبیاتو، عربي ژبې، یوناني پوهې، اسلامي عرفان او د لیکوالۍ پر فن لاسبرى شو. هغه د خپلې زده کړې او لیکوالۍ په اړه داسې لیکي:
«هر څومره معلومات مې چې لاسته راوړل هغه مې ټول لیکل.»
سلجوقي د څېړنو او پلټنو لپاره د پاکستان، هندوستان، مصر او عربستان هېوادونو ته سفرونه وکړل، عربي او انګلیسي ژبې یې پوره زده کړې.
استاد سلجوقي له یوې ادیبې او شاعرې مېرمنې، حمیرا سره واده وکړ. مېرمن حمیرا د ماندېنې او مخلصې مېرمنې په توګه د خپل مېړه په خدمت کې وه. سلجوقي د خپلې مېرمنې په وړاندې خورا مهربان و او پر هغې یې ویاړ کاوه.
ددې نیکخویه مېرمنې د درېځ په اړه سلجوقي د «ګلبرګها» په نامه د هغې د یوې شعري ټولګې په تقریظ کې داسې لیکلي دي: «نن مې څه ونه لیکل او د کتاب د پلټنې کار مې سرته ونه رساوه؛ ځکه زما او حمیرا د واده ۲۸ کلیزه ده. څنګه چې زموږ لومړنۍ خښته او نېکمرغه ملګرتیا د فضیلت پر بنسټ ایښودل شوې ده، له دې امله تل دا نېکمرغه ورځ د ادب په ګرانبیه ملغرو پییم او پرانیزم.»
دې تقوا لرونکې مېرمنې له خپلې حلالې شتمنۍ څخه د کابل د ګذرګاه په سیمه کې د علامه سلجوقي کور ته څېرمه یو جومات «د حمیرا سلجوقي جومات» په نامه ودان کړ او د یوې مؤمنې او مسلمانې مېرمنې په توګه یې خپل نوم تلپاتې کړ.
**رسمي دندې**
استاد سلجوقي د خپلې زیاتې پوهې او ذکاوت له امله په شل کلنۍ کې په هرات کې د مفتي پر دندې وګومارل شو. وروسته یې د حبیبیې، اماني او استقلال لیسو او د کابل په دارالمعلمین کې د فارسي او عربي ژبو د استاد، د هرات د پوهنې مدیر، په کابل کې د مطبوعاتو د رئیس، د امان الله خان په پاچهۍ کې د دارالتحریر د منشي او د بهرنیو چارو د وزارت د اطلاعاتو د مدیر په توګه دندې سرته ورسولې.
نوموړي په ۱۳۰۸ کال کې سیاسي بند هم تېر کړی دی.
استاد سلجوقي په ۱۳۱۵ او ۱۳۲۷ کلونو کې په ډهلي کې د افغاني جنرال قونسل او وروسته په قاهره کې د سفیر په توګه دندې سرته رسولې دي. سلجوقي په ۱۳۲۸ کال کې د ملي شورا په اوومه دوره کې د هرات د خلکو د منتخب استازي په توګه دنده سرته رسولې ده. عربي نومیالیو لیکوالو، لکه استاد نجیب الکیلاني، عباس المناصره، عمر عبید حسنه استاد صلاح الدین سلجوقي د «اسلامي ادبیاتو» د بنسټ ایښودونکو او د اسلامي نړۍ د وتلو او مشهورو لیکوالو په ډله کې شمېرلی دی.
علامه سلجوقي له څه د پاسه اویا کاله ګټور ژوند څخه وروسته د ۱۳۴۹ کال د غبرګولي په شپاړسمه



نېټه وفات او د کابل په شهدای صالحین کې خاورو ته وسپارل شو.

د هېواد نومیالي او وتلي سیاستوال او شاعر، عبدالرحمن پژواک د علامه سلجوقي په ویرنه کې یوه قصیده ویلې چې مطلع یې داسې ده:

اگر چه گریه به چیزی که آن رضای خداست — به نص دین و به دستور عقل هر دو خطاست

بمیرد عقل چو استاد دین و دانش مُـــــرد — چو عــقل مرد تــوان رضا و صبر کــجاست؟

## فکري او علمي لیکنې

استاد صلاح الدین سلجوقی د یو مسلمان شاعر او څېړونکي په توګه زیات شمېر علمي، عرفاني او هنري لیکنې کړي او د هېواد علمي او فرهنګي پانګه یې نوره هم بډایه کړې ده. د یو شمېر آثارو او کتابونو نومونه یې په لاندې ډول دي:

د معاني، بدیع او بیان په فن کې یوه رساله، افکار شاعر، آیینۀ تجلی، نقد بیدل، مقدمۀ علم الاخلاق، جبیره، تجلی خدا در آفاق و انفس، تقویم انسان، نگاهی به زیبایی، الإسلام فی العلوم والفنون، افسانۀ فردا، قواعد ادبیه، ثروت، اخلاق، ادبیات.

همدارنګه علامه سلجوقي له عربي او انګلیسي څخه یو شمېر لیکنې ژباړلې چې یو شمېر یې دادي: زن در تاریخ و مکاتب، علم اخلاق د ارسطو لیکنه، تهذیب الاخلاق د ابن سکویه لیکنه، محمد در شیر خواره گی د شوکت التونی لیکنه، تاریخ فتوحات اسلامی او نور.




زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي. هره ډله دې د علامه صلاح الدین سلجوقي د ژوند او علمي شخصیت په اړه خبرې وکړي او د ډلو استازي دې نتیجه نورو زده کوونکو ته وړاندې کړي.




١ - علامه سلجوقي چېرته او په کوم کال کې زېږېدلی؟
٢ – د علامه سلجوقي رسمي دندې کومې وې؟
٣ – د عربي لیکوالو له انده د علامه سلجوقي دریځ په اسلامي نړۍ کې څنګه دی؟
٤ –د علامه سلجوقي د شپږو کتابونو نومونه واخلئ.




زده کوونکي دې د علامه سلجوقي د شخصیت په اړه یوه مقاله ولیکي.





# د قانون منل د ملي یووالي ضامن

په یوې ټولنې کې د قانون شتون ډېر مهم دی؛ خو د قانون منل او پلي کول تر هغه هم زیات اهمیت لري. هغه قانون چې پلی نشي، که ډېر ښه هم وي، کوم ارزښت نه لري. له بلې خوا د امنیت او عدالت په تامین، د باور او ډاډ په رامنځ ته کېدو او د یووالي او انسجام د ټینګښت لپاره په یوې ټولنه کې ډېرعادي قانون هم زیاته او ښه مرسته کولای شي.

په دې لوست کې به د ملي یووالي په تامین کې د قانون د پلي کېدا او اغېز د ارزښت په اړه معلومات تر لاسه کړو.

**په ټولنه کې د قانون اهمیت**

د اسلام ستر پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمایلي؛ پخواني امتونه له دې امله هلاک شوي چې که کله به یو کمزوري شخص کومه ګناه کوله، قانون به پرې پلی کېده، خو که د لوړ پوړ کوم چا به ګناه وکړه، نو سزا به نه ورکول کېده.

افلاطون د یونان نومیالي فیلسوف عقیده درلوده چې پاچا له قانون څخه لوړ دی، خو وروسته یې نظر واوښت او ویې ویل: خپل ښار ددې پر ځای چې د اشرافو او لویانو په واک کې ورکړئ، هغه قانون ته وسپارئ.

## د قانون د پلي کېدو اړتیا

په ټولنه کې د قانون دنده د وګړو تر منځ د اړیکو تنظیم، له دولت سره د وګړو اړیکې، د حقوقو او امتیازاتو ټاکل، د وګړو او ډلو او په ټولنه کې د دولتي ادارو تر منځ د متقابلو دندو او مسؤولیتونو تنظیم دی. په دې ډول قانون انساني ټولنه له ځارویو او د ځنګل له ژوند څخه جلا کوي.

د قانون پلي کول او څارل د دولت دنده ده چې د عدالت د تامین له لارې په ټولنه کې سوله او امنیت ټینګوي. د ټولنې بېلابېل پوړکي هم د قانون په پلي کولو کې خپله دنده او مسؤولیت لري؛ ځکه که خلك او کورنۍ، ډلې او بېلابېل پوړکي په خپله ټولنه کې د قانون پلي کولو ته کار و نه کړي، دولت په یوازې سر نشي کولای د قانون په پلي کولو بریالی شي. متمدن او ژمن انسانان د ټولنې د امن او نېکمرغۍ لپاره هم پخپل ژوند کې قانونمندي عملي کوي او هم نور خلك د قانون پلي کولو ته هڅوي.

## د قانون د پلي کولو ګټې

له قانون څخه سرغړونه یا په سم ډول د قانون نه پلي کول په ټولنه کې د ټولو ګډوډیو لامل کیږي. امنیت او د هېواد د وګړو ژوند خرابوي. د اسلام د ستر پیغمبر صلی الله علیه وسلم د وینا پر بنسټ ټولنه له ګډوډۍ او ځوړ سره مخامخ کوي. قانونمندي او د قانون منل ډېرې ګټې او ښیګڼې لري. یو شمېر یې په لاندي ډول دي:

- د قانون پلي کول د ټولنې نظم ساتي او د هغې د اوسېدونکو حقونه ورته رسوي.
- د قانون پلي کول د ټولنې د غړو د ځان، مال او ناموس ساتنه کوي.
- د قانون پلي کول د کمزورو او بېوزلو وګړو حقونه له تاړاك څخه ژغوري.
- د قانون عادلانه پلي کول د ټولنې د افرادو(ښځو، نارینه ګانو، کوچنیانو، لویانو، د ټولنې د بېوزلي پوړکي) پر حقونو د بریدونو مخه نیسي.
- د قانون عادلانه پلي کول، د اداري فساد، تنظیم شوو جرمونو، د نشه یي توکو د دود او د ټولنېزو وژونکو ناروغیو مخه نیسي.
- د قانون پلي کول د یوې ټولنې د افرادو او قومونو تر منځ دښمنی او بې اتفاقی له منځه وړي.



لنډه داچې قانونمندي او قانون محوري سوله، امنیت، مینه او وروروګلوي، باور او ډاډ، یووالی او پیوستون، سربښندنه او ځان تېرېدنه، استقلال و آزادي غوښتنه او په پای کې ملي یووالی او پیوستون پیاوړی کوي او ټولنه د نېکمرغۍ، سوکالۍ او پرمختګ پر واټ روانوي.



## فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو کې په ټولنه کې د قانون د پلي کولو په اړه د اسلام د ستر پیغمبر د لارښوونو په اړه خبرې وکړي او نتیجه دې د استازو له خوا ټولګي ته وړاندې شي.



## ارزونه

١ – په ټولنه کې د قانون دنده څه شی دی؟

٢ – په ټولنه کې د قانون پلي کول د چا دنده ده؟

٣ – په ټولنه کې د قانون پلي کول څنګه کولای شي د انسان پر ځان، مال او ناموس د برید او تېري مخه ونیسي؟

٤ – آیا د قانون پلي کول د خلکو او ټولنو د غړو ترمنځ نارضایتي او خپګان له منځه وړلای شي؟



## کورنۍ دنده

په ملي یووالي کې د قانون محورۍ د اغېزمنتوب په اړه یوه مقاله ولیکئ.





## عدالت، د ټولنې د ټینګښت بنسټ

عدل د ظلم ضد دی، معنا يې وسط، برابري، مساوات، نظام، توازن او د افراط او تفريط ترمنځ حالت ته وايي. عدل او عادل د متعال خدای يو نوم يا يو صفت دی. د استوا، قسط، ميزان، انصاف کلمې هم د عدالت مفهوم افاده کوي.

عدالت د ټولنې په ټینګښت، ثبات، امنيت او پياوړتيا، د ولسونو په يووالي او پيوستون کې څه رول لري؟ په دې لوست کې به دې او دې ته ورته نورو پوښتنو ته ځوابونه ومومو.

### په اسلام کې د عدالت دريځ

د اسلام په سپېڅلي دين کې عدالت لوړ ارزښت او دريځ لري. عدالت د خلقت د نظام بنسټ او د آسمانونو او ځمکې د ټینګښت لامل دی. که چېرته دا عدالت ګډوډ شي، د کايناتو نظم او انسجام له ګډوډۍ سره مخامخ کېږي. لوی خدای جل جلاله د پيغمبرانو د بعثت او اسماني کتابونو د رالېږلو اصلي موخه د خلکو تر منځ د عدالت ټینګښت ګڼلې دی. فرمايي: ﴿لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنَاتِ وَأَنْزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتَابَ وَالْمِيزَانَ لِيَقُومَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ﴾ [د الحديد سورت، آيت: ٢٥].

ژباړه: «موږ خپل پيغمبران له ښکاره نښانو او لارښوونو سره ولېږل او له هغو سره مو کتاب او د عدل



تله (میزان) نازله کړه، چې خلك پر عدالت ولاړ وي.»
په اسلام کې عدالت یو مطلق ارزښت دی چې په هیڅ ډول نه ښایي له هغه څخه انحراف او سرغړونه وشي، یعنې اسلام د ژوند په ټولو ډګرونو کې د ټولو انسانانو لپاره، د دیني، نژادي، رنګ، قوم، ژبې له توپیرونو او نورو اړیکو له په پام کې نیولو پرته د انسانانو او بشري تمدنونو او مذهبونو تر منځ د عدالت پلي کول لازم ګڼلي دي.
اسلام د ټولو دینونو او نظریاتو پر خلاف د عدالت ټینګول، نه یوازې د مسلمانانو په وړاندې، بلکې د دښمنانو په وړاندې یوه اړینه خبره بولي. ګڼ شمېر قرآني آیتونه او د پیغمبر صلی الله علیه وسلم وینا پر دې خبرې ټینګار کړی دی. متعال خدای فرمایي: ﴿وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَآنُ قَوْمٍ عَلَى أَلَّا تَعْدِلُوا اعْدِلُوا هُوَ أَقْرَبُ لِلتَّقْوَى﴾ [المائدة: ۸].
ژباړه: «د کومې ډلې دښمني دې تاسو دومره راونه پاوري چې له عدالت نه واوړئ، عدالت وکړئ. دا له تقوا سره نژدې اړیکه لري.»
د (بني مخزوم) د قبیلې یوه مېرمن د غلا په جرم ونیول شوه او د غلا د حد مجازات ورته ورکړل شول. دې خبر په مسلمانانو کې شورماشور جوړ کړ چې د اشرافو پر مېرمنې د غلا د حد پلي کول ښایي ستونزې رامنځ ته کړي او په ټولنه کې ګډوډي راولي. د اصحابو یوې ډلې د اسلام د ستر پیغمبر ګران اصحابي، اسامه بن زید د پیغمبر صلی الله علیه وسلم حضور ته واستاوه چې د مخزومي قبیلې د دې شریفې ښځې له مجازاتو څخه تېر شي او یا یې لږ سپک کړي. پیغمبر صلی الله علیه وسلم ددې سپارښتنې په وړاندې په غوسه شو او اعلان یې وکړ. پخواني امتونه او قومونه له همدې امله هلاك شول. که کله به یو کمزوري او بېوزلي جرم سرته ورساوه، نو مجازات کاوه به یې، خو که به یو زورور سړي کوم جرم سرته ورساوه، هغه به یې خوشې کاوه. وروسته د الله پیغمبر دا تلپاتې شعار اعلان کړ: «په خدای قسم، که د محمد لور، فاطمه غلا وکړي، لاس به یې پرې کړم!»
تاریخ د امیر المؤمنین، عمر بن خطاب رضی الله عنه د مصر د والي، جلیل القدر صحابي عمرو بن العاص پر زوی د عدالت د پلي کولو کیسه په زرینو کرښو ثبته کړې ده. هغه د یو مسیحي قبطي ځوان د قتل په وړاندې له نوموړي صحابي او د هغه له زوی څخه قصاص واخیست او اعلان یې وکړ: «له کله راهیسې مو خلك خپل مریان کړي؟ په داسې حال کې چې میندو یې هغوی نړۍ ته آزاد راوړي دي!»
د عمر بن عبدالعزیز د خلافت په وخت کې د یوه ښار مسؤولین راغلل او وړاندیز یې وکړ چې د دښمن د نفوذ د مخنیوي لپاره دې اجازه ورکړ شي د ښار شاوخوا دېوال تاو کړای شي، ترڅو له ناامنۍ او زیان رسوونکو له زیان څخه وژغورل شي. د امیر المؤمنین، عمر بن عبدالعزیز ځواب دا رنګه و:



«خپل ښار د عدالت په پلي کولو خوندي او محفوظ کړئ!»

## عدالت د يووالي او پياوړتيا وسيله

د کورنيو او بهرنيو دښمنانو د نفوذ د ګواښونو د مخنيوي په وړاندې د ټولنې د ثبات، پياوړتيا او د ولسونو قدر او قيمت په عدالت کې نغښتی دی. ټولې ناخوالې، کورنی اخ و ډب او د ټولنو خواري او ذلت، په تېره بيا د اسلامي ټولنو، د عدالت په نه پلي کولو او له قانون څخه په سرغړونو کې پروت دی.

د عدالت او قانون پلي کول له يوې خوا په ټولنه کې د جرمونو او جنايتونو او له قانون څخه د سرغړونو مخه نيسي او له بلې خوا د يووالي، پيوستون، امنيت او قانونمندۍ لامل کيږي. ولس او دولت د کورنيو ګډوډيو او بهرنيو خطرونو په وړاندې يو لاس او يو موټی کوي.




زده کوونکي دې په مناسبو ډلو ووېشل شي. د اسلام په سپېڅلي دين کې دې د عدالت د مقام او ارزښت په اړه خبرې وکړي او د خبرو پايله دې د ډلو استازي نورو ته ووايي.




١ – د دې عبارت مفهوم څرګند کړي: «عدالت د اسلام په دين کې مطلق دی.»

٢ - د مخزومي مېرمنې په اړه د اسلام د ستر پيغمبر عدالت څرګند کړئ.

٣ - د امير المؤمنين دا وينا «خپل ښار د عدالت په پلي کولو خوندي او محفوظ کړئ!» څه معنا لري؟

٤ – د مصر د والي پر زوی باندې د امير المؤمنين د عدالت د پلي کولو کيسه څنګه وه؟ بيان يې کړئ.

### کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کورونو کې د «عدالت د ټولنې د ټينګښت بنسټ» تر سرليک لاندې يوه مقاله وليکي.






# د ملي يووالي په پياوړتيا کې د ډله ييزو رسنيو دنده

په تېرو لوستونو کې مو د ملي يووالي د اهميت او ارزښت په اړه ولوستل، پر دې وپوهېدو چې د ټولو نېکمرغيو او برياليتوبونو راز په يووالي کې نغښتی دی. د يووالي له لارې يوه ټولنه د پرمختګ لوړو پوړيو ته ځان رسوي او پر هر راز ستونزو لاسبرې کيږي. ښايي يادونه وشي چې آيا يووالی په خپله منځته راځي، آيا هر څوک د يووالي پر خوند پوهيږي؟ يا کومې محرکه قوې ته اړتيا شته چې په انسان کې د ملي يووالي روحيه او احساس رامنځ ته او پياوړی کړي؟ هو زموږ دنده دا ده چې په خپل هېواد کې له خپل وس سره سم په خپله ټولنه کې د يووالي تخم وکرو، خلکو ته د هغې ارزښت او اهميت په ګوته کړو او په دې ډګر کې عملي ګامونه پورته کړو.

ستاسو په اند د ملي يووالي په ټينګښت کې رسنۍ ولې ډېر اهميت لري؟

پورته مو يادونه وکړه، چې د يووالي د روحيې او احساس د رامنځ ته کېدو او پياوړتيا لپاره يوه ځواک ته اړتيا ده. دا ځواک په ټولنه او پرګنو کې د پوهې د کچې په خومره والي پورې اړه لري. په دې معنا چې خلك خومره پوهه لري، آيا د خپل دوست او دښمن توپير کولای شي، د خپل ځان او خپلې ټولنې خير او شر سره بېلولای شي او يا پر دې پوهيږي چې د يوې ټولنې د بري راز تر کومې کچې د هغه ټولنې د خلکو؛ نارينه او ښځو په يووالي کې نغښتی دی.



کېدای شي تر یوې کچې د یوې ټولنې په خلکو کې دا احساس موجود وي، خو اهمیت یې ښایي ورته هغسې چې لازمه ده، څرګند نه وي. یا نور داسې لاملونه شته، چې د ملي یووالي اړتیا پکې ډېره ښه محسوسېدای شي.
په یوه هېواد کې تر ټولو دمخه دا دنده د رسنیو پر غاړه پرته ده. سربېره پر دې رسنۍ د ولسونو د پوهې او فرهنګ په لېږد او انتقال کې مهم رول لوبوي. همدا رسنۍ دي چې فرهنګ له یوه نسل څخه بل ته لېږدوي. ددې ترڅنګ رسنۍ د ولسونو د ویښتابه وسیلې دي. هر څومره چې په یوې ټولنې کې رسنۍ پرمختللې، آزادې او ناپلوې وي، په هماغه کچه هغه ټولنه دعدالت او برابرۍ په ستنو ولاړه او له ظلم، تېري او تعصب څخه خلاصه او ژغورلې وي.
رسنۍ په یوه ټولنه کې مخکښ رول لوبوي او هر لوري ته چې وغواړي هغه ټولنه راکښلای شي. رسنۍ په اصل کې ټولنې ویښوي، دولتونو ته تګلاره ورکوي او په ځان پسې یې بیایي. رسنۍ د ټولنیزو اړیکو د وسیلې په نامه هم یادوي؛ یعنې ټولنې له یو بل سره تړي. له همدې امله یې د ټولنې په پرمختیا او ځوړتیا کې اهمیت د پام وړ بلل کیږي. ددې تر څنګ رسنۍ په یوې ټولنې کې ناخوالو او نیمګړتیاوو ته ګوته نیسي، د هغې لاملونه په ګوته کوي، د ټولنې تګلورۍ ټاکي او لازمه مرسته ورسره کوي.
رسنۍ د خپل همدې اهمیت له مخې د دولت څلورم رکن ګڼل کیږي او تر ټولو لوړ ځای لري.
رسنۍ په چاپي، غږیزو، انځوریزو او برښنایي بڼو موجودې وي. په چاپي رسنیو کې ورځپاڼې، جریدې، مجلې، په غږیزو کې راډیو، په انځوریزو کې تلویزیون او سینما او په برښنایي کې انټرنیټ شامل دي. هرڅومره چې په یوې ټولنې کې د رسنیو شمېر زیاتیږي، په همغه کچه پر عامه ذهنیت زیات اغېز اچوي.
رسنۍ د ولس د ویښتیا او بیدارۍ نښه ده. د رښتینو مطبوعاتو دنده د ولس لارښوونه، د ظالم مخنیوی او د حق او باطل تر منځ توپیر دی. د رسنیو دنده داده چې حقایق او واقعیتونه له ډاره پرته د خلکو غوږونو ته رسوي. ژمنې او مسؤولې رسنۍ خلك ملي یووالي مینې، محبت، ورورګلوۍ او ملګرتیا ته رابولي. پرمختللي هېوادونه له همدې لارې د نېکمرغۍ او پرمختیا لوړو پوړیو ته رسېدلي دي.
نن سبا په ګران هېواد کې د بیان او مطبوعاتو آزادي تضمین شوې ده. زیات شمېر خپرونې، راډیوګانې، تلویزیونونه، خبري رسنۍ، برښنایي رسنۍ او ویب پاڼې فعالیت کوي او د خلکو نظر، ارمانونه او هیلې غبرګوي.



د يادولو وړ ده چې رسنۍ او مطبوعات بايد د ټولنې سم او سالم لوري ته لارښوونه وکړي، د هېواد او ولس ملي ګټو ته وفادارې وي، خپل اصيل افغاني کلتور وساتي او د پردي کلتور له خپرولو ډډه وکړي. ژمنې رسنۍ کولای شي د يووالي او وحدت خوږ خوند خلکو ته وروړسوي، د شخصي ګټو پرځای خلک ملي ګټو ته راوبولي. پرديو ته خدمت، هېواد ته ستر خيانت وبولي. په دې توګه خپل ديني، اسلامي او افغاني رسالت سرته ورسوي او د نېکمرغۍ، سوکالۍ، پرمختګ او هوسا ژوند په لور خپله ټولنه پر مخ يوسي.




زده کوونکي دې په مناسبو ډلو ووېشل شي. د رسنيو د ښو او دندو په اړه دې له يو بل سره خبرې وکړي او د خپلو خبرو پايلې دې د استازو په واسطه نورو زده کوونکو ته ووايي.




١ – رسنۍ څنګه کولای شي، يوه ټولنه د يووالي او وحدت لور ته رهنمايي کړي؟

٣ – د ټولنې په پرمختګ، د سولې او عدالت په تامين او د ملي يووالي په ټينګښت کې رسنۍ څه رول لوبوي؟

٣ - د خپل هېواد د يو څو اوسنيو مهمو رسنيو نومونه واخلئ.




زده کوونکي دې په کورونو کې له خپل وس سره سم په افغانستان کې د چاپي، غږيزو (صوتي)، انځوريزو (تصويري) رسنيو نومونه وليکي او په بله ورځ دې ټولګي ته راوړي.





## تعصب، یو ناروا عمل دی

تعصب څه شی دی؟ متعصب چا ته ویل کېږي؟ په ټولنه کې د تعصب اغېزې او پایلې څنگه دي؟
اسلام تعصب ته په کومه سترگه گوري؟
په دې لوست کې به د نوموړو پوښتنو ځوابونه ومومو.

### تعصب څه شی دی؟

یو صحابي له پیغمبر صلی الله علیه وسلم څخه وپوښتل: «اې د خدای رسوله، عصبیت څه شی دی؟» د خدایﷺ پیغمبر وفرمایل: «عصبیت دا دی چې په ظلم کې د خپل قوم ملاتړ وکړې.»
د اسلام ستر پیغمبر په دې مبارک حدیث کې په لنډو خبرو د تعصب معنا څرگنده کړه؛ یعني له خپلوانو، قوم، قبیلې، سیمې، نژاد، ژبې، ډلو ټپلو، گوند، رئیس، مشر او نورو څخه په پټو او ړندو سترگو ملاتړ او ننگه کول تعصب گڼل کیږي.
د جاهلیت په دوره کې دعربو شعار دا و، «د ورور ملاتړ دې وکړه! که ظالم وي یا مظلوم.» د اسلام ستر پیغمبر د جاهلیت د دورې دا شعار داسې واړاوه: «که ورور دې مظلوم و، ملاتړ یې وکړه او که ظالم و، له ظلمه یې منع کړه. دا کار د هغه ملاتړ دی.»



د تعصب تر ټولو ناوړه بېلګې دا دي چې يوه ډله يا قوم د نژاد، قبيلې، فرهنګ، تاريخ، ټولنيزو پوړکو او نورو لارو چارو پر بل قوم يا خلکو د لوړوالي دعوه وکړي او نورو ته په سپکه سترګه وګوري.
دا ډول ناروا تعصبونه وژونکې ټولنېزه ناروغي بلل کيږي چې يو واحد ولس په څو څو دښمنو ډلو او ډلګيو وېشي او په پای کې ټولنه د کمزورۍ، بې وسۍ او ټوټه کېدو لور ته بيايي.

## اسلام او تعصب

د اسلام له څرګندېدو دمخه هم د عربو په سيمه او هم د هغه مهال په نړۍ کې د جاهليت د تعصبونو زنځيرونه د انسانانو په غاړو کې پراته وو. د ناپوهۍ تورتم د بشريت ژوند نيولی و. د اسلام د لمر په راختو دا توره او تياره شپه سبا شوه او د بشريت د ژغورونکي بعثت دا زنځيرونه او د جاهليت تعصبونه مات کړل، ټول انسانان د آدم عليه السلام اولاده او سره برابر وبلل شول.
قرآن کريم فرمايي: ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَاكُمْ مِنْ ذَكَرٍ وَأُنْثَى وَجَعَلْنَاكُمْ شُعُوبًا وَقَبَائِلَ لِتَعَارَفُوا إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ﴾[الحجرات: ١٣]
ژباړه: «اې خلکو، موږ تاسې ټول لومړی له نارينه او ښځې پيدا کړئ او بيا مو په ډلو او څانګو ووېشلئ، ترڅو يوبل وپېژنئ، د خدایﷻ په نزد ستاسو تر ټولو غوره هغه څوك دی چې ډېره تقوا ولري. باوري ده چې خدایﷻ پوه او خبر دی.»
د اسلام پيغمبر صلی الله عليه وسلم د حج پر مهال په خپله وداعيه خطبه کې د انسانانو تر منځ د برابرۍ اصل داسې اعلان کړ: «اې خلکو، خبر اوسئ چې ستاسو پروردګار يو، پلار مو (آدم) يو دی، خبر اوسئ هيڅ عربي پر عجمي او عجمي پر عربي، سور پوستی، پر تور پوستي غوره والی نه لري، مګر د تقوا په ارزښت، تاسو ټول له آدم او آدم له خاورو څخه پيدا شوی دی.»
وروسته يې مسلمانانو ته دنده ورکړه چې دا پيغام غايبو خلکو او راتلونکي نسل ته ورسوي.
په يوه بل حديث کې راغلي چې ګران پيغمبر اسلامي امت ته له تعصب څخه د ځان ساتنې په اړه دا خبرداری ورکړی دی: «لَيْسَ مِنَّا مَنْ دَعَا إِلَى عَصَبِيَّةٍ وَلَيْسَ مِنَّا مَنْ قَاتَلَ عَلَى عَصَبِيَّةٍ وَلَيْسَ مِنَّا مَنْ مَاتَ عَلَى عَصَبِيَّةٍ»[1]
يعنې؛ «هغه څوك چې عصبيت ته بلنه ورکړي، هغه څوك چې د عصبيت په نامه وجنګيږي او هغه

١- سنن أبي داود



څوک چې پر عصبيت ومري، زما له امت څخه نه دی.»

## د يوه باغ رنګارنګ ګلان

د اسلام له نظره د انسانانو شمېره او د جنس، نژاد، ژبې، د بڼې د بېلابېلوالي او کورني وېش، قومونو، قبېلو او ولسونو توپير د اختلاف، تنازع او تعصب لپاره نه دی، بلکې د ستر خالق د قدرت له نښو او بنده ګانو ته د هغه تعالی له بې شمېره نعمتونو څخه دي.

د وګړو، قومونو او ولسونو شمېره او بېلوالی د پېژندلو، مرستې او تعاون، د ټولنې د پرمختګ او سوکالۍ لپاره دی، نه د کرکې، تعصب، تجزيې، تفرقې او قومي غوروالي لپاره. د قومونو او قبېلو شمېره د ديني ارزښتونو، د فرهنګي ميراثونو او د ژوندانه د بېلابېلو بڼو په لرلو په حقيقت کې د يوه باغ رنګارنګ ګلانو ته پاتې کيږي چې د ځمکې د مخ د ښکلا او بډاينې، يووالي او پيوستون، د ملت د غوړېدا، پرمختګ او وياړ نښه ده. له دې امله ښايي ټول دا شعار په ګډه ووايو:

نه افغانيم و نی ترک و تـــتاريـــم — چمن زاريم و از يک شاخساريم

تميز رنګ و بو بر ما حـــرام است — کـــه ما پروردۀ يک نـــو بهاريم

اقبال لاهوري




زده کوونکی دې په ډلو ووېشل شي. هره ډله دې د اسلام د سپېڅلي دين په رڼا کې د تعصب د ناوړو پدېدو په اړه معلومات چمتو او د استازي په واسطه دې نورو ته وړاندې کړي.




۱ – د تعصب تر ټولو ناوړه بڼه کومه يوه ده؟

۲ – د اسلام د سپېڅلي دين له راڅرګندېدو دمخه قومونو د تعصبونو د يو څو بڼو نمونه واخلئ.

۳ - په يوه هېواد کې د قومونو، ژبو او نورو ځانګړتياوو شتون په څه شي دلالت کوي؟





## دکتور محمد یوسف

د هېواد د نومیالیو له معرفي کولو څخه زموږ موخه دا ده چې لومړی د افغانستان د وتلو ملي مشرانو، پوهانو، لیکوالو او شاعرانو حق اداکړو، یاد یې تازه وساتو او ولس ته یې اتلولی، خدمت او سرښندنې په زړه کړو. له بلې خوا غواړو له دې لارې په ګرانو زده کوونکو کې له هېواد سره د مینې روحیه او احساس پیاوړی کړو. زده کوونکي پر دې وپوهوو چې له هېواد سره رښتینې مینه د هغوی د پرمختګ او د هېوادوالو د ژوند د سوکاله کولو لپاره په کار او زیار کې نغښتې ده.

تاسو د دکتور محمدیوسف نوم اورېدلی دی؟

د افغانستان د صدراعظم، دکتور محمد یوسف نوم د دموکراسۍ له لسیزې سره غوټه شوی دی. له هغه وروسته چې په هېواد کې د مشروطه غوښتنې د غورځنګ څپې راپورته شوې، د وخت پاچا اړ شو چې واک له ولس سره شریک کړي. له دې امله یې د صدارت له څوکۍ څخه د سردار محمد داود خان د ګوښه کېدو غوښتنه ومنله او دکتور محمدیوسف یې د هېواد د لومړني صدراعظم په توګه د باور د رایې د اخیستلو لپاره د افغانستان پارلمان ته ورواستاوه.

دکتور محمد یوسف په ۱۲۹۵ لمریز کال په کابل کې زېږېدلی دی. له نجات لیسې څخه تر فارغېدو



بیا په کابل پوهنتون کې شامل شو. وروسته د فزیک په څانگه کې د دکتورا د سند د ترلاسه کولو لپاره د المان هېواد ته لاړ. هېواد ته له راستنېدو وروسته لومړی په کابل پوهنتون کې د استاد او بیا د پوهنې وزارت د معین په توگه په کار وگومارل شو. محمدیوسف د محمد داؤد په کابینه کې د کانو او صنایعو د وزیر په توگه هم دنده سرته رسولې ده.

دکتور محمد یوسف د ۱۳٤۱ لمریز کال د کب په ۲۲ مه نېټه د صدراعظم په توگه ونومول شو او د باور د رایې د اخیستلو لپاره پارلمان ته معرفي شو. د هېواد پارلمان نوی پرکار پیل کړی و، زیاته کاري تجربه یې نه درلوده؛ ځکه د دموکراسۍ نظام د لومړي ځل لپاره په افغانستان کې پلی کېده.

له دې سره سره چې دکتور محمدیوسف د دولت په چارو کې پوره تجربه درلوده، د وزیر په توگه یې د کانو او صنایعو په وزارت او نورو لوړو دولتي پوستونو کې کار کړی و، د پارلمان غړو د هغه له نوماندۍ سره مینه نه درلوده. د دې نه لیوالتیا یو لامل د سردار محمد داؤد خان په کابینه کې د وزیر په توگه د هغه د دندې سرته رسول و. پارلمان غوښتل داسې یو څوک صدراعظم شي چې په پخوانۍ کابینه کې یې کار نه وي کړی.

دکتور محمد یوسف هغه مهال پارلمان ته ورغی چې یو شمېر محصلان دمخه هلته ځای په ځای شوي وو. نوموړي پارلمان ته یوه اوږده وینا واوروله. له لنډو خبرو اترو او ځینو نیوکو وروسته د پارلمان غړو د هغه وینا ومنله او د افغانستان د صدراعظم په توگه یې هغه ته د باور رایه ورکړه.

کله چې د ۱۳٤۳ لمریز کال د لړم په ۳ مه نېټه د افغانستان صدراعظم غوښتل پارلمان ته ننوزي، محصلانو یې مخه ونیوله. دکتور یوسف له هغوی وغوښتل خپل استازي صدارت ته ورواستوي چې د غوښتنو په اړه یې خبرې اترې وشي.

نوي حکومت له ناڅاپي پېښو سره د مقابلې وس نه درلود، له دې امله وضع ورو ورو کړکېچنه شوه. محصلانو پر لاریونونو لاس پورې کړ. ددې ناکراریو مسؤولیت د دکتور محمدیوسف په غاړه ولوید، نو له صدارت څخه یې استعفا وړاندې کړه. د ۱۳٤۳ لمریز کال د لړم په ۸ مه د نوموړي د صدارت دوره له دوه کاله او یوولسو ورځو څخه وروسته پای ته ورسېده.

دکتور محمدیوسف له صدارت څخه وروسته د ۱۳٤٤- ۱۳۵۱ لمریز کلونو په منځ کې په بن کې د افغانستان د سفیر په توگه خدمت وکړ. د ۱۳۵۷ لمریز کال له کودتا څخه وروسته په المان کې پاتې شو، له هغه ځایه یې د رژیم پر ضد خپلې مبارزې ته دوام ورکړ. د مجاهدینو د حکومت په بهیر کې یې د هرات په غونډه کې برخه اخیستې ده.



دکتور محمدیوسف په ۱۳۷۷ لمریز کال په المان کې وفات شو.

د صدراعظم په توګه د دکتور محمدیوسف په ټاکل کېدو د دموکراسۍ لسیزه پیل شوه؛ اساسي قانون تدوین شو؛ د مطبوعاتو او ګوندونو آزادي اعلان شوه. د مطبوعاتو قانون خپور شو، خو د ګوندونو قانون خپور نشو. ګڼ شمېر ملي، اسلامي او کمونیستي خپرونو په کار پیل وکړ. یو شمېر خلکو له دې آزادیو او پارلماني خوندیتوب څخه ناوړه ګټه پورته کړه، د کمونیستي ایډیالوژۍ په خپرولو یې سیاسي فعالیتونه پیل کړل. حکومت دوام ونشو کړای او د خلکو غوښتنې بې ځوابه پاتې کېدې. په پایله کې حکومت نسکور شو او په ۱۳٤٤ لمریز کال کې محمدهاشم میوندوال د صدراعظم په توګه وټاکل شو.




زده کوونکي دې په بېلا بېلو ډلو کې د دکتور محمدیوسف د ژوند په اړه خبرې وکړي او وروسته دې خپل نظر نورو ته بیان کړي.




۱ - ولې دکتور محمدیوسف ونه کړای شول د صدارت دنده سرته ورسوي؟

۲ - د دکتور محمدیوسف د صدارت له دورې سره کوم ستر بدلونونه منځ ته راغلل؟

۳ - ستاسو په فکر آیا د وینا له آزادۍ او دموکراسۍ څخه ګټه اخیستنه نامحدوده ده؟




زده کوونکي دې د وینا د آزادۍ د پولو په اړه خپل نظر په یوې مقالې کې ولیکي.



# د هېواد حقونه

هېواد د مور په څېر دی. څنګه چې مور خپل ماشومان په خپلې غېږ کې لويوي، شېدې، اوبه او خواړه ورکوي، مينه او محبت ورسره کوي، هېواد هم د خپلو اوسېدونکو لپاره د مور حيثيت لري. په دې توګه هېواد پر خپلو اوسيدونکو ډېر حقونه لري چې په دې لوست کې به يې وپېژنو.
ستاسو په فکر يو هېواد پر خپلو اوسيدونکو کوم حقونه لري؟

کور د استوګنې تر ټولو کوچنی واحد دی. د کورنۍ غړي د يوه مشر له خوا اداره کيږي. د کورنۍ ټول غړي د خپل کاله د مشر له لارښوونو سره سم خپل کارونه تنظيموي، کوچنيان او ځوانان لوست لولي، ښوونځيو ته ځي، پوهنتون لولي، يا په کروندو او نورو دندو بوخت وي او خپله راتلونکې د وخت له غوښتنو سره سمه جوړوي.
د کورنۍ مشر د کورنۍ د نورو غړو په مرسته د هغوی د ژوند ټول لګښتونه: خواړه، اوبه، درمل، جامې، د ښوونځي او لوړو زده کړو لګښت، ... چمتو کوي. اسلامي اصول، ارزښتونه او بنسټونه او د هغوی له مخې د کورنيو د غړيو د خپلمنځي اړيکو د ټينګولو، د ژوند د لارو چارو، د مشرانو په وړاندې د درناوی، پر کشرانو د ترحم او زړه سوي، له انډيوالانو او ملګرو سره د ناستې ولاړې، د کلي، چم او مالت له خلکو سره د راشه درشه، له خپلوانو، ګاونډيو او نورو سره د اړيکو د ساتلو او نورو اړينو او له ورځنيو غوښتنو سره سم لارښوونې ورته کوي او د ژوند پر اوږده واټ يې سموي.



ددې ټولو کارونو په وړاندې د کورنۍ هرغړی دنده لري د کورنۍ د غړو تر منځ د وحدت او يووالي، وروروليِ او خورولۍ روحيه پياوړې او ټينګه وساتي.
هېواد هم د کور په څېر زموږ د دمې، استوګنې او د ستړيا د له منځه وړلو ځای دی. د مور په څېر موږ ته د شېدو پرځای اوبه، خواړه او مېوې راکوي او په خپلې ارتې غېږ کې راته د هر راز سوکالۍ او هوساينې لارې چارې برابروي. له دې امله پر موږ ګڼ حقونه لري. هر حق يې ښايي وپېژنو او په سرته رسولو کې يې خپله ديني او ملي وجيبه پر ځای کړو. د نورو حقونو په ليکه کې هېواد پر موږ دا لاندې حقونه لري:
**د خپلواکۍ، ځمکنۍ بشپړتيا او ملي واکمنۍ د ساتلو حق**: هېواد پر خپلو اوسېدونکو حق لري چې تل يې د پرديو له ناپاکو منګولو څخه خلاص وساتي، ځمکنۍ بشپړتيا يې خوندي کړي او هيڅ ورانوونکو عناصرو او پرديو مزدورانو ته ددې موقع ورنه کړي چې په يوه يا بله پلمه يې د هېواد خپلواکي او ځمکنۍ بشپړتيا له ګواښ سره مخامخ کړي. د يوه هېواد خپلواکي د هغه هېواد د اوسيدونکو په ملي يووالي، پوهه او زده کړه، له نفاق او ژبنيو، قومي، سمتي، ګوندي او نورو اړيکو څخه په پاک چاپېريال کې خوندي کېدای شي. که د يوه هېواد اوسېدونکي په خپلو کې په توکم، ژبې، سمت او نورو اړيکو سره وېشلي وي، نو غليم او په مورچل کې ناست دښمنان په ډېره اسانۍ کولای شي، د هغه هېواد خپلواکي، نېکمرغي او سوکالي هر مهال له ګواښ او خطر سره مخامخ کړي.
**د ودانولو او بيارغاولو حق**: وران ويجاړ هېواد او له بدمرغيو ډک کور او خاوره د انسان د استوګنې جوګه نه وي. الوتونکي به مو ليدلي وي، په څومره مهارت او ورتيا خپلې ځالې جوړوي او د خپل نسل د پايښت لپاره يې سمبالوي. انسانان هم له خپل اقتصادي ځواک سره سم خپل کورونه او د استوګنې ځايونه جوړوي. ښکلي کوي يې او د ساتلو لپاره يې هلې ځلې کوي.
هېواد هم د هېوادوالو ګډ کور او استوګنځی دی. ښايي له خپل کور څخه کم ونه ګڼل شي. د هېواد په ودانۍ او ښکلا کې د هغه هېواد د ټولو اوسيدونکو نېکمرغي او سوکالي نغښتې ده. د هېواد دننه ټول شيان يا شخصي ملکيت وي يا ملي او د ټولو خلکو. پر شخصي ملکيت د هغې خاوندان پام کوي او نه پرېږدي څوک ورته زيان ورسوي. خو د ملي يا عامه شتمنيو په اړه بيا دا احساس نشته. څوک يې خپل مال نه ګڼي. که څوک ورته زيان رسوي، نو وايي پر ما يې څه! همدا د ((پر ما يې څه!)) جمله د هېواد له ورانۍ سره ډېره مرسته کوي. که څوک د ناپوهۍ له مخې يا په لاسي (عمدي) ډول عامه شتمنيو ته زيان رسوي، ښايي په ډېرو خوږو او نرمو جملو او نصيحت يې مخه ونيول شي. دا کار دوې ګټې لري: يوه دا چې هغه څيز ته د زيان رسولو مخه نيول کيږي، بل دا چې زيان رسوونکي افراد د دې زيان پر ماهيت پوهيږي او په راتلونکي کې خپله نورو ته د زيان د نه رسولو لارښوونه کوي. که هرڅوک پر خپل وار له خپل وس سره سم له ډېرو کوچنيو کارونو څخه نيولې تر لويو پورې د هېواد د ودانولو او هېواد ته د زيان رسولو په مخنيوي کې خپل مسؤوليت وپېژني او ادا يې کړي، کېدای شي پايله به يې ډېره ښه او په زړه پورې وي.
**د ودې او پرمختګ حق**: له يو ټاکلي بريد څخه مثبت لوري ته حرکت او خوځښت له پرمختګ



څخه عبارت دی. دا پرمختګ انسان ته د روغتیا، سلامتی، زده کړې، استوګنې او کار د چمتو کولو له لارې شونی کیږي. د ټولنې پرمختګ یوازې په یوه ډګر پورې محدود نه دی. په هر ډګر کې نوښت او مثبت بدلون ته پرمختګ ویل کیږي. د بېلګې په ډول، ټولنیز پرمختګ، اقتصادي پرمختګ، سیاسي پرمختګ، علمي پرمختګ، ښوونیز او روزنیز پرمختګ، کرنیز پرمختګ او په لسګونو داسې نور. دا پرمختګونه په ټوله کې د انساني ژوند د ښه کولو او لوړولو په موخه کیږي. تر هغه پورې چې د یوه هېواد استوګن تر خپل وس پورې په خپلو اړوندو ورسپارل شوو کارونو کې صداقت او ایمانداري ونه کړي او ځان ستړی نه کړي، پرمختګ نه ترلاسه کیږي او نه د انساني ژوند په کیفیت کې بدلون راځي. له دې امله موږ ټول، که زده کوونکي یو، که ښوونکي، بزګر، ډاکټر، قاضي، څارنوال، سوداګر، هټیوال یا ... ښايي په خپلو اړوندو کارونو کې له رښتینولۍ او صداقت څخه کار واخلو او خپل مسؤولیت په سمه توګه سرته ورسوو. په پایله کې هرو مرو هېواد پرمختګ کوي چې ټول فردي پرمختګونه او د ژوند په کیفیت او څرنګوالي کې بدلون له همدې لارې تر لاسه کیږي.

**د چاپېریال او د استوګنې د ځای پاک ساتل او ښکلي کول**: هېواد پر هر اوسېدونکي حق لري چې طبیعي او د انسان پر لاس جوړ شوی چاپېریال یې پاک وساتي او د ښکلي کولو او ښایسته کولو لپاره یې هلې ځلې وکړي. له کوره نیولې د کار تر ځایه، شاوخوا چاپېریال، پارکونو، سړکونو، بڼونو، ونو او ځنګلونو، اوبو، چینو او کاریزونو، دښتو او غرونو، کانونو، تر ځمکې لاندې زېرمو او پر ټولو هغو ځایونو پام کول او له هغوی څخه معقوله او سمه ګټه اخستل چې په یوه ډول نه یوه ډول د انسان د ژوندانه له پایښت سره مرسته کوي او هېواد سمسور ساتي.

په لنډ ډول د هېواد د حقونو ساتل او د هغې درناوی په خپله د هغه هېواد د اوسېدونکو د حقوقو بسیاینه او د هغوی له ژوندانه سره مرسته کول دي. له دې امله باید د هېواد ټول حقونه وساتل شي، درناوی یې وشي، ترڅو زموږ حقونه وساتل شي او درناوی یې وشي.




زده کوونکي دې د هېواد د مهمو حقونو په اړه خپل نظر نورو ته بیان کړي.




١ – د یوې کورنۍ غړي یو پر بل باندې کوم حقونو لري؟
٢ - بې اتفاقي په کور، قوم او هېواد کې څه پایلې رامنځ ته کوي؟
٣ –د هېواد د ودانۍ او چاپېریال د پاک ساتنې لپاره څه کول په کار دي؟

